


# اطلاعات او کلتور

۱۳۵۳ لمریز کال
دریمه گڼه
دتاسیس کال ۱۳۳۹

دانقلاب ملي رهبر ددولت رئیس او صدر اعظم ښاغلي محمد داؤد دیوه رسمي او دوستانه سفر په غرض دغبرگولي دمیاشتي په ۱۶ نیټه زموږ دوست او گاونډي هیواد شوروي اتحاد ته سفر وکړ. مسکو ته ددوی د رسیدو سره سم دونوکوا په هوایي ډگر کي دشوروي اتحاد دمشرانو له خوا دوی ته هر کلي وویل سو.

په عکس کي دشوروي اتحاد د عالي شورا دریسه هیأت صدر نیکولای پودگورني، دوزیرانو دشورا رئیس الکسي کاسیگین او نور ستر کسان لیدل کیږي.



اعلیحضرت غازی امان الله خان، چې د دوی په دوره کې افغانستان بیا خپله ازادي اعلان کړه



د خپلواکۍ د جګړ قوماندان اعلیحضرت غازی محمد نادرشاه



غازی مارشال شاه ولی خان د خپلواکۍ مجاهد



غازی سپه سالار شاه محمود خان د خپلواکۍ مجاهد



پیاوړی لیکوال مرحوم محمود طرزی

# د هیواد د خپلواکۍ د بیرته اخستلو د ۵٦ کالیزې په هکله زموږ د ملي مشر د وینا متن



د افغانستان د جمهوریت موسس او د خپلواکۍ حامي، د دولت رئیس او صدر اعظم
ښاغلی محمد داؤد

گرانو او درنو وطنوالو!

ویاړم چې په دغه تاریخي او شانداره ورځ چې ټول مملکت د ګران وطن د خپلواکۍ د بیرته اخستلو شپږ پنځوسمه کالیزه په خوښۍ سره لمانځي خپلې د زړه د کومې مبارکۍ هغو حماسوالو

درنو مشرانو ته چې د هیواد د سرلوړۍ او نېکمرغۍ په امید او هیله حرکت کوي او دغه مقدس مقصد ته رسیدل د خپل

ایمان او ملي فرایضو جزء ګڼي. یعنې ای ګرانو خویندو تاسې او ای ګرانو ورونو تاسې او تاسې هغو خلکو ته چې

لا تر اوسه هم د تیرو ویاړونو داستان ستاسې په خاطراتو کې مجسم دی او تاسې د افغانستان فداکاره اردو ته

وړاندې کوم.

دغه راز د آزادۍ د لارې د شهیدانو پاک روح ته او هغو ټولو ستړو کسانو

ته چې په دغه ملي جهاد کې یې ښکاره برخه درلوده او هغو ته یې لارښوونه کړې ده زیات درود استوم. هغه چې

کیدای شي د دغې تاریخي ورځې په یادونه کې یې زده کړو، د آزادۍ سره مینه او د خلکو د فکر او عمل

پیوالي دی.

بېشکه چې هر څومره ستړی او تاند دی، بیا هم د یوه ملت د معنوي قوت او ګډ او متحد تصمیم په مقابل کې کوچنی کیږي او مضمحل کیږي.

هغه کسان چې د دغه هیواد د شور او ځوږ نه ډک تاریخ په اوږدو کې د تیري کوونکو د برلاسي تیریو په مقابل کې بریالي شول هغه وسایل چې په لاس کې یې درلودل ډیر ناچیز وو. د دوی بریالی خپلې لارې د یوه مشعل په رڼا کې تعقیبوله، هغه مینه، د وطن سره مینه او د آزادۍ سره مینه وه.

ځکه د دوی په مړینه یې نوب کې ژوند د ټیټ سر او بې ننګۍ ژوند باله.

«پاته په دوهم مخ کې»

(د ۱ مخ پاتې)

زموږ د ولس ټینګې ارادې هم د لوی خدای په تائید مضافه زموږ د پلرونو اراده ده او دا هغه تصمیم دی چې نه بدلیږي.

په تېرو او حالاتو او د هر ډول قربانۍ او فداکارۍ په منلو سره زموږ د ډېر مقدس ملي ناموس ساتنه او څارنه،

د ګران افغانستان پوره خپلواکي ده. زموږ د هیواد ارغوني تاریخ. زموږ د خلکو د ایثار او فداکارۍ ډېرې شاهدۍ چې نه چاپي زموږ له زړونو نه ووزي او دې ته باید پام وکړو چې د ملي خپلواکۍ او اقتدار د ساتنې او بقا د پاره څومره مهمې او درنې وظیفې په غاړه لرو. کله چې موږ خپله دغه تاریخي ورځ نمانځو زموږ خالصانه

او د زړه له کومې همدردي او هیلې په تیره هغو پښتنو او بلوڅو ورونو ته متوجه دي چې تر اوسه لا هم د خپلو ملي هیلو د پوره کیدو په لاره کې خپلې مجادلې ته دوام ورکوي. خپلې او د افغانستان د خلکو ډېرې ښې هیلې د دوی د بری او نیکمرغۍ د پاره وړاندې کوم.

په پای کې یو ځل بیا د دغې پښتو ورځې په مناسبت خپلې د زړه له کومې مبارکي د خپلو ټولو ګرانو ورونو او خوېندو خدمت ته وړاندې کوم

او د خپلواکۍ د لارې د شهیدانو پاکو ارواحو ته ډېر درود استوم.

ژوندی دې وي ملت او تل دې وي زموږ خپلواکي.

# د ملي عوامي ګوند مشر خان

## عبدالولي خان کندهار ته راورسید

کندهار د خبر کونکی ۵:

د ملي عوامي ګوند مشر خان عبدالولي خان کندهار ته را ورسید.

د کندهار والي ښاغلي محمد ایوب عزیز، عسکري قوماندان تورن جنرال ارکان حرب محمد نعیم، د دایرو رئیسانو په کندهار کې او سیدونکو پښتونستانیانو د خان عبدالولي خان هرکلی وکړ.

د باختر خبریال د کندهار څخه خبر ورکوي چې خان عبدالولي خان د کندهار په ښار کې د پوهنې د شاګردانو، خلکو او پښتونستانیانو د دستو تاو ده هرکلي سره مخامخ شو.

یو بل خبر وایي د ملي عوامي ګوند مشر خان عبدالولي خان تېر غرمې وروسته په یوه بجه د هلمند ولایت ته راورسید او د نهر سراج د ولسوالۍ د جوړولو په برنامه کې د والي پوهاند فضل ربي پژواک او د اړوندو رئیسانو د خوا یې هرکلی وشو.

خان عبدالولي خان ته د رسیدو په وخت کې د بزرګانو خلکو، مامورینو او کار ګرو د خوا په چکچکو، د ګلانو په شیندلو او تل دې وي پښتونستان ژوندی دې وي افغانستان او تل دې وي د هیواد جمهوري نظام په نارو سره هرکلی وویل شو او هغه ته د دوو ماشومانو د خوا د ګلانو ګیډۍ ورکړې شوې.

خان عبدالولي خان د نهر



د ملي عوامي ګوند مشر خان عبدالولي خان

سراج په ولسوالۍ کې د لنډې مودې د تم کېدو او د غرمې د ډوډۍ تر خوړلو وروسته کندهار ته را روان شو.

«پاته په ۲۵ مخ کې»




مسئول مدیر: کریم (طالب)
مهتمم: رحمت الله (مړوند)
اداره: د شهیدانو واټ
د ۱۳۵۳ کال د غبرګولی میاشت

# خپلواکي

زموږ ګران هیواد افغانستان چې د آسیا د ختیځ او لویدیځ ترمنځ د پیوند کړۍ او د اتصال مرکز دی د تاریخ په بیلو بیلو دورو کې له هره لوري د استعماري

قدرتونو او چپاولګرو امپراطوریو د یرغل او تاراج شومه ګرځیدلی دی. خو د استعمار ګرانو د تجزیه غوښتنې د استعماري سیاست سره سره دا

باشهامته او پر خپلواکۍ مین قبر خپل ملي وحدت هیڅکله له لاسه نه دي ورکړی. که څه هم استعماري قدرتونو د لنډو مودو د پاره د لته لار پیدا کړي او

تسلط یې موندلی دی، خو په هغو اثناوو کې هم د ملي مجاهدینو او وطندوستو مبارزینو تینګو پرکو او پرله پسې حملو غلیم ته د خپلو شومو د سیسو د عملي

کیدو او زیاتې بهره برداري موقع نه ده ورکړې. بلکه هغوی یې په خپلو پښو لمبولي دي.

دغه وجه ده چې زموږ ارغوني هیواد د تاریخ له ابتدا څخه بیا تر ننه ورځې پورې خپل ملي حریت ارضي تمامیت او تاریخي رسالت په ابرومندانه توګه ساتلی دی او هیڅ قدرت هر یې توب یې نه دی منلی.

د هیواد د خپلواکۍ په لار کې د وطن په مینه سوي

پښتګانو په وارو وارو په خپلو سرو لوبې کړې دي او په خپلو رنګینو وینو یې د دې خاورې سپیره ډاګونه رنګولي دي.

۵۶ کاله پخوا د غرب د استعماري امپراطورۍ سره د افغانانو سرشاره مبارزه د استعمار د اضمحلال یو ورانګینه خاطره ده چې هر کال د جوزا په شپږمه نیټه

د هغې لمانځنه کوو. په دغه ورځ د افغان قهرمان قام د ښمن ته د عبرت درس ورکړی او استعمار او استثمار سوو ته یې د شجاعت سبق ورزده کړی.

بلې، د برتانیا استعماري امپراطورۍ چې د یوه افغې مار په څیر د نړۍ د غږ پچو هلو او خوځو لو په فکر کې وه، غوښتل یې چې دا د زمري مینه هم غږ پچوهې

او هضم یې کړي مګر برعکس د اعمل د یوه مدهش بم په څیر د هغه افعې په لمانه کې وچاودی. له دغه مهاله د ذکر شوي امپراطورۍ ذوال دا شروع شو

او خپلې مستعمري یې یو په بل پسې له لاسه ورکړې.

هغه عظیم قدرت چې امپراطورۍ یې لرلو په ده نه درلوده او په هر ډول عصري وسلو لکه توپ، توپکو،

بمونو او لوتکو سامبال و، زموږ د ملي قهرمانانو د ایماني جذبې، توري او سرو قې په مقابل کې له پښو ولویدی او زموږ خپلواکۍ یې بیرته په رسمیت وپیژندل.

د خپلواکۍ د هغې پاکې مینې او وطندوستۍ ارمغان دی چې زموږ پلرو او نیکه ګانو د دې ارغونې قاقو یې سره لرل. هغو د خپلواکۍ قدر او ارزښت ښه ترا درک

کړی ؤ، حتی تر دې اندازې چې د خپلواکۍ په لارې کې وژوند ته په هیڅ ارزښت نه ورقایل. هغو به ډیره مینې انه سرونه بایلل مګر خپلواکۍ یې د ګټل او د اوبانه

نی به پوره سرخ روبی موږ ته را وسپارل. تر کومه ځایه چې د دوی وظیفه وه، پوره سرلوړي یې سرته ورسول او هغه څه چې پرموږ ده موږ ته یې د اوسپارل څو د هغه د اپښه وکړو.

د ښه مرغه افغاني قهرمانانو د خپل ملي رهبر په لارښوونه په هیواد کې د جمهوري انقلاب په منځ ته راتلو سره خپله وظیفه په ډیره ښه توګه ترسره کړه.

«پاتې په ۲۵ مخ کې»

د رحمت الله ژباړه

# دیوه قهرمان ملت تفکر

د جوزا شپږمه زموږ د هیواد په تاریخ کې نه هیریدونکې ځلانده لویه ورځ ده. دا هغه

ځلانده ورځ ده چې زموږ د خلکو زړونو ته یوه نه هیریدونکې روښانه خاطره اعاده کوي. ۵۶

کاله پخوا دغه ورځ وه چې افغان ولس د یوه اوږده قیام په پای کې چې د هیواد د خپلواکۍ د بیرته ګټلو

لپاره وو جګړې له میدانه غځه په بریالي ډول ووتې، سره له دې چې د هغه وخت د استعمار منګولې

ډیرې قوي وې خو بیاهم د خپلواکۍ او تاریخي موجودیت بیرغ او چټ وساتي استعمار او

تیری کوونکو ته یې په ماته ورکولو سره په ختیځه سیمه-کې د شهامت او د لاوړې اساس

کیښود.

هغه درس چې د ازغونې اریانا په ورښانه مدرسه کې تالیف

سو، وروستنه هغه د زښتنولې هنر، او د بشري کرامت مفهوم او د ژوندانه ارزښت یې دلیې د هغه

وخت اسیرو هیوادونو ته په فصیح ډول افاده کې. دغه درس غځه

په عبرت اخستلو سره کرار کرار زموږ په لویه وچه کې د زړونو معنې او کیفیت بدل سو په هرځای او

هرځای د کې د هغه د وګړو بیدارې په سبب استعمار ګرو خپل منګرونه یو په بل پسې

ور پښو دل.

په نړۍ کې نوی ملتونه پیدا سول او د نوو هیوادونو د پیدا

کیدو سره سم د نړۍ رنګ هم تغیر و موندل اسې تغیر چې د افغان د آزاد ملت د احساس او فهم سره

مطابق او یوشي ؤ او زموږ د خلکو د نیمګړې و هیلو د بشپړ یدو اساس کیښودل سو.

د جوزا شپږمه زموږ د خلکو د قهرماني هیراوونکې خاطرات لا بې قیمتې کوي او د تاریخ

له پاڼو غځه داسې ښیي دا یادوي چې د نړۍ خلک هغه د یوه قهرمان ملت د فداکارۍ، سرښندلې

او کلک جهاد د سمبول په حیث پیژني.

د خپلواکۍ د بیرته اخستلو

قیام او د هغه حاصلول د هغه افتخارات له جملې غځه دي

چې زموږ د غوږه کلن تاریخ په حافظه کې او س لاهم تازه والی لري او تر او سه لا د هغه یادونه د استعمار

غوښتونکو او د هغو د بچیانو یدونه ر بیږدوي. له د غه ځایه غځه دي چې دلو بې تبې غځه د غلاصون

په غرض د لوی افغانستان او د هغه د خلکو د ښمنا ن د چل او فریب نقش تیږی خودا سې چل او فریب چې نختی

و بیښل اود انقلاب ژامن د هغه غځه یې خبره له دې او زموږ د انقلاب لار ښود په هغه وخت کې چې جمهوري نوی بیرغ

پورته کاوه د خپلواکو هیواد ود نوی اوزاده ژوند ترمنځ یې حد ځرګند کړ او د افغان ملت د عظمت سمبول چې

یې دستر تاریخي بدلون د شاهد په حیث او چتاوه په لاندې عبارت یې و هغه ته اشاره وکړه:

«د تاریخ په شاهدۍ تل د تیری او استعمار ومخې ته دریدلې یو همدارنګه مو د هغو د چمو او د سیسو

له کښله ریات تاوانونه لیدلي دي »

د دې د سیسو او چمو نمونه د خپلواکۍ د ګټلو په وروسته کلونوکو یو تاریخ

درس او زموږ د ځلانده تاریخ په پاڼو کې یو تورهٔ ټپله ده چې د هغه غځه

بې خبره نه یو.

هغه تور والی د استعمار له جادو څخه پیدا سوی او د افغان جادو ماتوونکی نسل هغه پرې پر ژر وخت کې باطل کړ چې د هغه او ژه د پې ته تر لیرو ځایو پورې رسیدلی ده.

ان ورځ د هغه تر دی چې د استعمار: چوونکی پیروان په دغه ډول شعبده بازی لاس پوری کی هغه پراخوالی ته نه پرېږدو او سوځو ئې ځکه د عصر خبرت او ژړونکی زموږ سره ده نور نو د دښمنانو د چم او فریب د پاره وخت نه سته، موږ د ژوندانه په دیگه کې ښه پر ایشیدلی یو او د هغه شرابو د پاره موچې تر اوسه پورې لا د ت.ك په ریښو کې د ی خمان مات کړی دی.

دغه غوږ داژ دی آواز د دغه درك زیری ورکوونکی او زموږ د فکر او اندیښنې څرګندوونکی دی چې وایي:

«هر وخت چې استعمار پر ملت د پر مختګ او ترقی د کاروان څخه راګرزوي او د هغه د روسته پاته کېدو په خاطر کوښښ کوي لومړی او ډېره مهمه وسیله چې کار څخه اخلي د خلکو تر منځ د بدبینی او نفاق د تخم پاشل او د هغو ملي یووالي ته زیان رسول دی.»

دغه دی چې د تاریخ درانده اربه مو په رباطونو پر مخ څرخولي او د انقلاب ایډیالوژی زموږ د وحدت سرمشق او زموږ یووالی او پر حق ایمان لرل، فرهنګ، ملي او معنوی افتخاراتو، د فطری پوهې او د ژوندانه افق رڼا ته د رسیدو په برخه کې زموږ لارښوونکی ده.

د خپلواکۍ د مهبت یا هغه ناپایه لوی نعمت چې خدای (ج) تر هغه لوی نعمت نه دی پیدا کړی په درك کولو سره د ضمیر لرونکو ملتونو په منځ کی، خپل د وجدان محصول و روچانه نړی ته ښخښو او د خپل ملي ژوندانه د پېښوا سره همغږ او د خپل ولسي ملي نظام لو هدفونه یو ځل بیا د خپلې تاریخي لویې ورځې د لمانځنې سره یوځای وهغو کسانو ته چې د هغه په پرمیدلو باندې قدرت ولري سپارو:

«د افغانستان ملت تل سوله غوښتونکی او دی. د بشر سعادت، دوستي، صمیمیت، او خوشبختۍ د سولې او صفا د سایې لاندې ته په بل شي کو نه وینی ځکه نو له دی کبله دی چې زموږ د باندنۍ سیاست اساس او مقصد د ګران افغانستان د ګټو او ملي تمامیت پر ساتلو د متقابل احترام او د نړۍ د ټولو ملتو د خلکو سره پر دوستي باندې ولاړ دی او وی به.»

بلی او زموږ د آزادمنشو خلکو د قهرماني سپېڅلې ځکه قهرماني او قدرت د حق څخه سرچینه اخلي او د هغه حقیقت او واقعیت د حق څرګندونه ده چې شریف او با وجدانه انسانان و هغه ته د قدر په سترګه ګوری.

دغه څرګند خصوصیت چې د تاریخ په اوږدو کې زموږ د ملي ممیزاتو څخه ګڼل سوی دی د خپلواکۍ د بیر ته تر لاسه کولو او وروسته په نړۍ کې د اسیر ملتونو د خپلواکۍ په خاطر او د هغو د انساني طبیعي حقوقو او د سولې او صفا د ټینګښت له پاره افغانستان او د هغه حق پېژندونکو خلکو تل کوښښ کړی او د هغو حقوقو ته یې په درنه سترګه کتلي دي.

اوس چې موږ د تاریخ په ژړو رباطو کې نوی منزل ته رسیدلي یو او د ځوان جمهوریت نوی بیرغ لاندې چې په ډېر مخوښی درېږي، د نوي بنیادي تحولاتو په فکر کې یو.

د نړۍ فوق العاده هوسایی او آرامی انساني مهربانانه عواطف او استقلال پرستي او انقلابي ستري آرزوګاني موږ د هغو ملتونو او ټولنو د همدردی د پاره راپولي کوم چې تر اوسه پورې ئې لا هم د بشریت په قانون کې خپل ټاکلی ځای نه دی نیولی.

دد غه ډول ملتونو په لیکی کې موفکر او اندیښنه، او کوښښ په شرافتمندانه او سوله ایزه توګه د پښتنو او بلوڅو ورونو د حقوقو د ژوندی کېدو او د سرنوشت د ټاکلو له پاره موږ او ډې

«پاته په ۲۵ مخ کې»

پوهنوال عبدالشکور «رشاد»

# په براهوي ژبه کې لومړی معلوم پښتون شاعر

د پښتنو بنټ پوهان (۱) په سړبني قبیله کې یوه پښه د «میانه» په نامه یادوي. په دغه پښه کې بوستانه (روحاني) عشیره وه چې «غرشین» بلله کیده (۲) او د میانه قبیلې روغې جوړې به په دوی کیدلې.

د دغو غرشینو پښتنو یوه کورنۍ په کندهار کې میشته وه، د دغې کورنۍ یوسفي ملا ملک داد چې پلار یې ملا دین محمد، ملا ملک داد د غرشین غالباً د هوتکو د باچهي تر ړنګیدلو (۱۱۵۰ هـ ق) وروسته له خپل اصلي وطن کندهاره څخه د بلوڅانو کلات ته ابړیدلی او هلته میشت سوی دی.

ملا ملک داد عالم سړی و په پښتو، پارسي، بلوڅي او براهوي ژبو پوهیده او په دغو څلورو ژبو کې یې شعر وایه. له بده مرغه د ملا ملک داد د کندهاري د پښتو، پارسي او بلوڅي نظمونو مجموعې ورکې دي او فقط په براهوي ژبه یې یوه منظومه دیني رساله د زماني له چپاوه خوندي پاته ده.

د ملا ملک داد د کندهاري دغه براهوي رساله «تحفة العجائب» نومیږي او حنفي مسایل پکښې عملي بیان سوي دي. د نظم بڼه یې مثنوي ده، له عروضي لحاظه په شپږ بیز (مسدس) هزج بحر کې ویل سوې ده، د بیتونو عروض او ضرب یې محذوف یا مقصور راغلي. د مثال له پاره یې دا دري بیته راوړو:

| مفاعي لن | مفاعي لن | فعولن |
| --- | --- | --- |
| مسلماني | بښناک پنجو | خدایا |
| اصیب کړني | لڼا هر پنج | خدایا |
| خداوندا | کني توفیق | ایستي |
| که توفیق تو | رفیق ایما | ن اقتي |
| خداوندا | مسلمانا | تي ایمان |
| عطا کړاي | کریم غفا | روحمان |

(۱) بنټ پوه یعني نساب، د انساب عالم، په نسبونو پوه.

(۲) په ځینو کتابو کې د غرشین کلمه د «غرسین» په بڼه هم لیکل سوې ده.

ترجمه: «د اسلام بناوې ښځه دي — خدایه ښځه سره ژموږ په نصیب کړې
خدایه! توفیق ورا کړې — او توفیق له ایمانه سره مل کړې
خدایه! مسلمانانو ته ایمان ورکړې — ته کریم و غفار و رحمان یې»

دملا ملک داد کندهاري «تحفة العجائب» څلو پښت باب لري او د بیتو ټول شمیر یې ۲۷۵ دي.

د کتاب شروع د خدای (ج) په ستاینه سوې ده وروسته د رسول الله (ص) ستاینه او بیا د دوزخ او جنت بیان دی تر دې وروسته د مسلمانې ښځې د رکنو څرګندونه سوې دی. د بې لمانځه په غندنه کې یو خاص باب دی د کوچني اختر د صدقې بیان هم پکښې داخل دی. د تحفة العجائب د کښلو نیټه ۱۱۷۳ ه ق ده او د تاریخي ویاړ له امله دا هغه نه هېر بدونکی کال دی چې د پښتنو او بلوڅو ګډو قوتونو پاني پت په مشهور ډاګ کې د مرهټو په خونړي یو لښکر و بري وموندا او د پښتنو او بلوڅو د غیرت یوه ابدي کارنامه د تاریخ په پاڼو کې ثبت سوه.

د تحفة العجائب اصلي نسخه د مؤلف په کورنۍ کې خوندي ده او د څوارلسم هجري قرن په اوایلو کې داسې یو قدردان پر پېښ سو چې د براهوي ژبې دغه تر ټولو پخوانی کتاب یې د تل له پاره له ورکې وژغوره او د ملا ملک داد غرشین کندهاري نوم یې د هېرې له مرګه وساته.

دغه قدردان مولوي نبوجان قنبراني ؤ (۱) چې نوموړې نسخه یې د مؤلف له خپلوانو څخه واخیستله او د تألیف تر نیټې ۱۶۱ کاله وروسته یې په ۱۳۳٤ ه ق په لاهور کې لومړی وار چاپ کړه (۲).

---

(۱) نبوجان مستنګ ته نږدې د «چوتو» کلي او سېدونکی ؤ. په نبو جان چوتوي سره مشهور دی مولوي نبو جان چوتوي د مولانا محمد فاضل درخاني (۱۳۱٤ ه ق مړ) شاګرد ؤ.

(۲) بلوچستان مېن فارسي شاعري ۱۷۳—۱۷٤—۱۷۵ مخونه ـ د کوټې چاپ.

بیلتس د یونان لرغونې شاعره

# راز

کله چې هغه راستون شو، مخ مې په دواړو لاسو څخې پټ کړ، او ما ته وې ویل:
مه بېرېږه، چا خو زموږ مچه نه ده لیدلې... ور ته و مې ویل:
څنګه چا نه ده لیدلې! آیا نه پوهېږې چې شپې زموږ مچه ولیده او سپوږمۍ
ستورو او د سهار سپېدو ته یې خبر ورکړ.
سپوږمۍ سیند ته نژدې شوه او زموږ راز یې ور ته وو وایه. سیند د کوچنۍ کښتۍ
د ماږو خوا ته نږدې شو او هغه یې له دغه راز څخه خبر کړه
ماږو دغه پټ راز خپلې کښتۍ او د کښتۍ کب نیوونکي ته خبر ورکړ،
بیا هم که دغه راز د کب نیوونکي سره پاتې شوی وای د بېرې ځای نه ؤ،
خو کب نیوونکي دغه راز یوې ښځې ته وو وایه.
سبا به زما مور او د یونان ټول خلک د دغه راز څخه خبر شي.

د پوهاند رښتين ليکنه

# داورنګ زیب معاشقه

په مغلي پاچاهانو کې اورنګ زیب په دینداري کې مشهور دی او په دې وجه یې په ځان باندې د محي الدین لقب ایښی و.

دا یې چې ده د مذهبي شیانو څومره قدر کاوه او دیني چارو ته یې د احترام په سترګه کتل، مګر دا هر څه چې وو، د ده د کاڅ په یو مخ وو، د ده د کاڅ په بل مخ یې د معاشقې خبرې هم ثبت شوي دي.

دا د ده د معاشقې دفتر یوه پاڼه په لاندې کرښو کې وګورئ چې د مولانا ابوالکلام ازاد له (غبار خاطر) څخه رانقل شوې ده:

د ده د برهانپور په ښار کې خوا کښې زین آباد نومې یو کلی و، په دې کلي کښې یوه ښکلې سرودګره او سندره چې د زین آبادي په نامه مشهوره وه، دې سرودګرې د خپل ښایست او خوږو نغمو په څه شوا کښې او د اورنګ زیب د شاهزادګۍ په زمانه کښې زړه بیولی و. د اورنګ زیب دغه د معاشقې قصه ډېره خوږه ده هیله ده چې وې لولئ.

یوه ورځ اورنګ زیب د برهان پور د (آهو خانه) نومې باغ کښې د هوا خورۍ د پاره قدم واهه، په دغه ورځ د ده خاله (د میر خلیل خان زمان) ښځه هم د خپلو خاصو خدمتګارانو سره د دغه باغ ته د سیل او ګرځېدو د پاره راغلې وه. په دغو میرمنو کښې یوه زین ابادي هم وه چې د ساز په نغمو کښې سحر ګره او په ناز و نخرو کښې بې نظیره وه.

اورنګ زیب د خپلې خاله د رنګینې ټولۍ سره ملګری شو او د خوندونو کیفه څک باغ د بڼ کښې په خوږه تفریح او هوا خورۍ بوخت شو.

دغه رنګینه ټولګی د یو داسې ونې تر سیوري لاندې ودرېدل چې له هغې ګڼو څخه یې سره او زېړ امو لې را ځوړند وه، په دې وخت کښې زین ابادۍ له د شهزاده څخه پروا ونکړه او نه یې ده د خاله څخه خیال وساته، په یوه بې پروایۍ او شوخۍ یو د غې ونې یوه اوچت ښاخ ته ور ټوپ کړ او یو میوه یې تري راوشکوله، دا شوخي د ځان نما په ماله یې باندې چه ورته ولګیده او په هغه کې یې ورته قهرپیدا شو په دې وخت کې زین ابادي په مخصوص انداز کې د ناز او مکیز له ډکې سترګې شهزاده ته ور واړولې او بېچاره یې د زړه په سر و پښت د سترګو په یوه نظر یې د شهزاده فیصله وکړه او د صبر و قرار ماڼۍ یې ورانه او بربادې کړه.

ډېر هوښیار به لیونی کاندي پوهېږه
کرشمې د پریزادي یې څه له دي

په دې باب نواب شمسواز خان د ماثره مراء لیکلي دي «بکمال ابرام وسماجت زین ابادي را از خاله محترمه خود ګرفته با آن همه زهد خشک و تقشف بحث شیفته و دلداده او شده، قدح شراب به دست خود پر کرده مي داد. ګویند روزی زین آبادي هم قدح باده پر کرده به دست شهزاده داد و تکلیف شراب نمود».

یعنې په ډیره زاري او منت یې زین آبادي له خپلې خاله څخه واخیسته او سره د هغې ټشې پر هیزګارۍ

اود ینداری چې دی ور باندی مشهور شوی ؤ. زیب ابادی په عشق او مینه کښی داسی بی

اختیار او بی واکه شوی چې پخپل لاس به یی د شرابو پیالی ډکولی او هغی ته به یی ور کولی. وایی

چې یو ورځ زیب ابادی پخپلو لاسو د شرابو ډکه پیاله اورنګ زیب ته وړاندی کړه. شهزاده

ور ته په ډیره زاری وویل چې زما عشق او مینه ددی جام په څښلو مه ازمیه! لاکن ددی زړه پری

رحم ونه کړ. آخر شهزاده لاعلاجه اراده وکړه چې د شرابو پر دغه پیاله باندی شونډی

کیږدی. کوم وخت چې دی د شهزاده بی بسی او بی واکی ولیده او دی د پیالی څښلو ته تیار شو نو

ژر یی پیاله را بیرته کړه او ویی ویل:

زما غرض د عشق امتحان ؤ

هغه وشو د امعامله ورو ورو داسی حد ته ورسیده چې شاه جهان پری خبر شو او د لیکلو په باب کښی هم

ددی قصی خبری و لیکلی شوی. دارا شکوه ددی قصی په وجه د چوغلی موقع و موندله او پلار ته

یی د اورنګ زیب په سر ډیری خبری ورسوی چې وګوره دی ریا کار څرنګه له ځان څخه

پرهیزګار او څه سپی جوړ کړی

ؤ د امعلومه نه وه چې د اغوتی به څرنګه خوړ پدله مګر قضا او قدر

په خپله فیصله وکړه او یمنا ورد څوانی او بیغلتوب په وخت کښی زین ابادی له دنیا تیره شوه، چې

قبر یی تر اوسه په اورنګ ابادـ کښی د یولوی تالاب په غاړه موجود دی وایی چې اورنګ زیب

ددی په مینه ډیر غمجن او سخته صدمه ور ورسیده او په دغه ورځ یی د ښکار کولو حکم وـ

کړ. پدی خبره خلکو ته تعجب پیدا شو چې دداسی غم په ورځ ښکار او تفریح کول څه معنی

لری کله چې اورنګ زیب ښکار ته ووت، نو سر لښکر عاقل خان په یو کوڅه او ځانله وخت کښی

اورنګ زیب ته عرض وکړ چې دداسی غم او ماتم په وخت کښی ښکار ته تلل څه سبب لری، اورنګ

زیب په جواب کښی دا شعر ور وایه:

ناله های خانګی دل را تسلی بخش نیست

در بیابان میتوان فریاد خاطر خواه کرد

پدی وخت کښی د عاقل خان

په خوله ته دا شعر ووت:

عشق چې آسان نمود آه چې دشوار بود

هجر چې دشوار بود یار چې آسان ګرفت

د اورنګ زیب په زړه رفت او نرمی راغله یو څنګه یی وکړه چې دا شعر د چادی؟

عاقل خان وویل:

د هغه چادی چې ځان د شاعرانو

په ډله کښی نه شمیری. اورنګ زیب پوه شو چې دا په خپله د عاقل دی.

اورنګ زیب د موسیقی په فن کښی

هم لاس درلود، مګر په ښکاره یی دی خبرو ته شا کړی وه.

په عمومی لحاظ د مغولو پاچاهان

ټول عشرت پرست او په مستی او نشو کښی ډوب وو، د اورنګ زیب د معاشقی ر کاټ مر و اوریده، خوشحال خټک

دیر کاټ په غاړه کښی د اورنګ زیب مسلمانی په باب یو شعر لیکلی دی چې هغه هم پدی ځای کښی وړاندی

کیږی:

چې په نام پښتون غو ځینزی دی خو ځینزی

اورنګ هسی رنګ پادشاه دی د اسلام

## خپلواکی د پوهانو له نظره

خپلواکی د ساتلو په برخه کی

صناسی ټول قوت په یو وار کی دی او

هغه اوی خطر چې صناسی خپلواکی ته متوجه دی، هغه ځان ځانی او پر یوه لار

نه تلل دی.

«لانګفلو»

په ظلم کی ژوندی او د اسارت منل د ژوندی بی ایقه درجه او بی د غیرتی

نهایی حد دی.

«سیسرون»

باید په ژوند کی زړه ور او میړنی

واوسو تر څو چې آزاد ژوند وکړو او

د آزاد ژوند څخه پوره خوند واخلو.

«ګوېته»

ژباړونکی: زلمی یار محاذزوی
د تاریخ د څانګې محصل

# د شاعر نبوغ

پوشکین پخپل اثر (اعترافات) کې داسې وایي: ځوانان پرته د ځوانۍ د قوت نه بل شی نه پېژني

یعنې د عضلاتو، اعصابو، عواطفو او احساساتو قوت او انرژي، په عین حال کې همدغه قوت دی چې

دوی وژوند ته نږدې کوي او یا یې د ژوند نه لیرې کوي، دوی په دغه قوت پسې منډې وهي همدغه د ژوند

علاقه شغلې د دوی مینان کوي ځو په پای کې دغه ودانګۍ او روښنایي د دوی د سترګو پر

بصیرت باندې تأثیر ښندي، نور نشي کولای چې د رڼایي او تاریکۍ، نیکۍ او بدۍ، سعادت

او بدبختۍ توپیر وکړي. زه هم په دغو آفتونو مبتلا شوم.

د ځوانۍ په وخت کې بېباکه بوالهوس او غرڅاووسړی وم، د عیش او نوش او خوشګذرانۍ په دریاب کې مې غوټې وهلې.

په هر شي کې مې زیاتوب کاوه د اعتدال په معنی نه پوهېدم، اما د نفس عزت، اعتماد او عالي همت

مې درلود، د قرون وسطي د سپرلیو او قهرمانانو په رفتار او

اخلاقو باندې مین وم، پیله سپما مې وچکو ته زیات مصرف کاوه

وغریبانو او بېنوایانو ته مې ځان ور رساوه، د فقیرانو او مسکینانو سره مې مرسته کوله. هرچاچې به وماته ځان

وارساوه له ما نه یې مرسته او یاري غوښتله ځکه نو ما خپل ځان په خطر کې اچاوه.

که څه هم ما عیاشي او بوالهوسي کوله خو زړه ور او بېباک وم داودو خیر غوښتونکی وم نو له دې جهته ځکو

او خلکو زما سره د مینې او الفت اظهار کاوه. په هغه وخت کې مې خواږه شعرونه ویل، نو لوړ اخلاق د مزیت په خاطر

د بوچو اشعارو تعریف او صفت کاوه ځرنګه چې مور مې یوه حبشي ښځه وه ځکه نو ډېر قوي او تود مزاج وم په

عیاشي او خوشګذرانۍ کې مې افراط کاوه، هر وخت به د انځوالانو سره په ساقي خانو کې کښېنستم. غلبلې، ناډې

او جنګ به مې آسمان ته رسېدې زما د وحشتناکې او مستو خندا له امله به ټول واته هلکپک کېدل سربېره پردې

چې د شرابو سره مې علاقه درلوده خو سره د هغه زیات شراب مې څښل.

عشق مې په نظر کې یوه طبیعي

غریزه وه چې تنها قوي او تندرست

اشخاص د هغه څخه بهره مند کېدلای

شي، ما د هغه عشق مینې او محبت سره

علاقه نه درلوده چې په هغه کې د شکایت

فراق، سوز و درد او بېلتون موجودوي خو فقط عشق مې د جنسي غریزې نه بللی ؤ!

«روزا ایفانوفنا» ښکلې نجلۍ وه زما سره یې مینه او محبت درلود او ما خوب یې نه درلود چې

خپل عشق زما مخ ته ښکاره کړي ځکه په دې وهم کې وه چې پر ما باندې مسخرې او ټوکې ونه کړي

ددې و عشق ته به د نفرت او کرکې په نظر وګورم او یا تصمیم ونیسم چې هغه عشق نیست و نابود

کړم.

«روزا» ښه پوهېده چې یې له خپله ځانه بل د هیچا سره مینه او

محبت نلرم، تنها خپله خوشحالي په نظر کې لرم، هیڅکله د نیات او د مینګار په معنی نه پوهېدم

اشارو وفادارۍ ته په ارزښت قایل نه وم، اما سربېره پر دغه زما سره یې عشق درلود.

نبوغ او قدرت یې زما په شاعرۍ کې لیدی زما اشعار یې ښه په یاد وه. انځه دا چې پر «روزا»

باندې زه بې نهایته ګران وم.

هر وخت و مظلومانو او بېنوایانو

ته ور تلم په خیر یې کارو کې به

مې ځان په خطر کې اچاوه

دروژا ـ محبت او مینې زما سره ورځ په ورځ زیات توب پیدا کاوه د نټیا چې زما او دروژا تر مینځ

د مځکې او اسمان فرق و. روژا د پدمرغو ښځو څخه وه، په هر ځای کې روژا بیچاره په تیره بیا په

بید باړ او فاحشه خانو کې شپې او ورځې تېرولې. د فقر او بیچارګۍ کې یې غوټې وهلې،

څه وخت چې ړنده وکړه، پلار او مور ئې مړه شوی وه، بیوه بداخلاقه ښځه یې درلوده د «روژا» تربیه

دغې سختزړې ښځې په غاړه واخیسته همیشه به یې ناوړه سلوک ور سره کاوه. روژا له هره محبته

محرومه وه. یو نامرده ځوان د رغانه او چم ورسره کړی و هغه پسې ځوان د روژا سره دواده

وعده کړې وه خپل مقصد یې هغې حاصل کړی و. بې غیرته ځوان د هغې لپاره روژا سکېرلې

ایله کړه او دهغې باکه لمن ئې ور ککړه کړه. په دینو چړکو سترګې د یاس او نا امیدۍ په

دریاب کې پرانزې پاتې شوه.

د دغه وخت نه اسکېرلې روژا ناوړه لارو ځله او کله به

د ځوانانو سره څه مخ کېدله. روژا جې بوه ښایسته او معصومه څېره درلوده دې لیاقت ئې

درلود چې بو نجیب انسان یې مینه وی او د بو، ایکمرغه کهول میرمن شی په هغه شرم او نا پاکه سر نوشت مبتلا روژا د ښېلې دلدی

او شغل څخه یې بدراغله، او دا ارزوئې درلوده چې د بوه پاک او شریف سړي سره پیوند ګلوی پیدا کړي. د تېرشوي

کارو څخه لاس واخلي. هغه سړی راضي کړي چې د دې سره واده وکړي تر څو کوښښ وکړي چې بو خوشبخته کورګی

واوړي، او دمینې او محبت جونګړه جوړه کړي.

تل دغسې غمجنې اندېښنې د روژا

سره موجودې وې. هر وخت به زما سره په ساقي خانو کې مخامخ کېدله. څه وخت چې به زه دا نو بو الانو سره په مجلس

اخته وم نو به یې په ډېر تعجب د سترګو تر کنجو دا ته کتل اما هیڅکله یې جرئت نه درلود چې زما سره مینه او محبت

ښکاره کړي. هغې غمګینه څېره درلوده همدغه سبب و چې زما نظر یې ور جلب کړی و، آرزو یې درلوده

چې ور نزدې شم او بغل ته یې کښېنم وخبرو ته یې غوږ و نیسم.

«روژ» «۲٤» کلنه نجلۍ وه

طلايي زلفې، بادامي سترګې او اوګانې یې درلوده. د سترګو شاو خوا ئې شنې لکې ښولې وې چې دوړا په خواشنې

ویرا او بدبختۍ څخه ښکاره کېدله. خبرا نتیا په دې ځای کې ده چې روژا سره د خپل ناوړه کردار و خدای ته

قینګه عقیده درلوده د فقر او ناداري له کبله ئې وهرشی ته لاس اچاوه. خو بیا هم ډېره پرهیزګاره وه. زه په دغه

تعجب کې لا هم وم چې څنګه نیکي او بدي، بستي، او فضیلت، تاریکي او روښنايي په بوه ځای کې راټول شوي دي.

ما د روژا سره د کوم عشق او محبت احساس ونکړ لیکن د رحم او شفقت له لارې مې د

بیچارې نجلۍ دغه ته جواب ورکړ. او هغه مې وځان ته نژدې کړه د لطف و مهربانۍ په غېږ

کې مې ونیوله. نجلۍ زما د محبت د اظهار نه بې اندازې خوشاله شوه، بیچاره روژا سعد ستي

د سعادت او خوښۍ په دریاب کې ډوبه شوه!

په دې ډول د روژا سرشار،

مایوسانه او زوړ عشق ته ډېر متوجه کړم، څه وخت چې روژا و پوهېده چې زه د هغې سره مینه

او محبت لري خپل شغل ئې پرېښود او ځان یې زما د سعادت او خوشالۍ لپاره وقف کړ.

ما نوی ژوندیې هیڅکله هم د هغه تصور نه درلود شروع کړ. روژا تصمیم نیولی و چې زما فکر

او حواس وخپل ځان ته جلب کړي تر څو زما د نورو ښځو د عشقبازۍ څخه را وګرځوي.

زه نه پوهېدم چې سر کښې وکړم او یا آرام او ساکت واوسم، او یا د روژا فرمان بردار شم.

هر ڼګه چې زه د روژا د عشق په لومه کې بند شوی وم نه پوهېدم چې په څه ډول د روژا د عشق

د زور لند و نه ځان خلاص کړم؟

بلې، ما ډېر مصرف کاوه هر څه چې مې درلودل هغه مې

دلاسه ور کړه، اما روزا د هغه ناوړه کار نه یو څه پېښې ته اولی کړې وې. کوچنی بی کاوه چې هغه

وساتي. خو دا پېښو د جهیز په پوول پسله واده وخپل مېړه ته ورانده کړي. دې ژما د رضایت

او خوشبختی لپاره یې وماته اجازه را کړه چې ژما اول اجابو نه او سامانونه ستا په

اختیار کې دي لیکن ژه حاضر نه شوم چې هغو حرام وشیانو ته لاس وراوږد کړم. ځکه چې ما د روزا

سره د راده خیال نه درلود نو په دې نسبت ما د دې د شیانو څخه استفاده و نکړه. څرنګه ممکنه

ده چې ژه د دې بدې ښځې سره واده وکړم په داسې حال کې چې ژما ژړه د بل عشق په اور کې بند

• دی او ژه ټې ډېر په عذاب کې یم؟

په هغه وخت کې ما د یوه بدبخته

ژوند او عذاب احساس وکړ، د روزا بیچارې سره مې مینه پیدا کړه په دغه وخت کې مې ژړه

د بلې ښځې سره هم پیوند پیدا کړی ؤ نو اچاره شوم چې د خپل وجدان او د روزا سره خیانت وکړم

او یو داسې عشق ته تسلیم شوم چې د روزا او نورو خلکو څخه مې پټ ساتی. کاشکې د روزا سره په

داسې حال کې اشنا شوی وای چې د اورد سره مې روابط نه درلودای او یا مې د نورو سره خپل روابط پرې کړي وای

اما افسوس د دې کار قدرت هم را سره نه ؤ. ما د روزا سره د مهر- بانی او لطف له لارې مینه کوله

په همین حال کې د لویو خاندانو سره مې ننګ او د ننګ د اشرافی ښځو سره مې معرفت او پیوند-

ګلوی درلود ..... یوه د غو معتبرو ښځو کې یوه بې اندازې ښکلې او ژړه وړونکې وه چې د هغې نوم

«کنتس ګرډ چا» ؤ او ژړه مې بر هغې پاندې بایللوی

دښتیا هم دا ښځه د حسن او

جمال یوه نمونه وه. په اندام او ښایست کې ټې جوړه نه درلوده ژه د هغې تور او ژلفو، مخمور او

ستر ګو او سرو بانه خو ګانو ډېر سخت نا کراره کړی وم ملایم سپین بدن او موزون اندام یې

درلود د ښکلا رب النوع بلل کېدله، د هر لیدونکی ژړه او ایمان یې وړه ی. دا ښځه یو ژور

دریاب غوندی وه، هر څه چې مې ور کول هغه نه ښکېښې معلومیدل هر څه مال چې مې درلود په دغه

دریاب کې مې اچوي دا قول د دې ژړه وړونکې ښځې د بوی نازنینې مې چې په خاطر. لیکن بری

مې و نه موند هر څونه پېښې چې مې ور ته خر څولې هغونه یې ډېر ناز کاوه. او څان یې کښېښ.

یوه ورځ په داسې حالت کې چې اول بدن مې لړزیدی او ژړه ل مې درزا دروازه مې ور و ټکول په ډېره چټکتیا سره مې روزا پیدا

کړه. په دې وخت کې ما په خمار پېښې بایللی او شرافت مې ګروګ. د دې دپاره چې هغه پور ژر تر ژره ادا کړم

د روزا څخه مې پېښې وغوښتې، اجلی یې له کوم څخه او شکه نه سمدستی هغه خپلې ټېمې پېسـ چې د خپل جهیز دپاره یې ساتلی

وې، وماته یې را کړې. ما پېښې واخیستې د کنتس کره ولاړم او د هغې مخ ته مې وا چولې د کنتس ستر ګې له خوشالی و ځلیدې د دغو پېښو په لرت یې ژما سره ښه وضع راو اخیستله ځکه نو ما د کنتس دغه مهربانه رویه او وضع د څان سعادت او نیکمرغی وبلله. بې له سپما پېښې ور ته خر څولې. هغې بې وفا، عشوه ګری فریب کاره ښځې ژما سره غوره رویه اختیار کړه او ژه یې و څان ته ژدې

کړم بیا هم ما طمع پیدا کړه. د دې د عشق په خاطر مې بیچاره روزا چې ټېمې پېښې یې را کړې، وې صبره ژما دا لیدلو په انتظار کې وه، بر مخ مې هیره کړه.

کنتس د نورو اشرافو ښځو په شان د آس د سپرلی سره علاقه درلوده کله به یې شرط هم واهه څه وخت چې به یې شرط و ګټی نو سمدستی به یې هغه عاشق او مین د شرط ادا ینه کوله. نو ژما سره یې هم یوه ورځ شرط وتړی هغه شرط هغې و ګاټه. ما هم مناسب فرصت پیدا کړ څو د پېښو په مقابل کې کنتس و څان ته را کش کړ نو ما د دوهم ځل دپاره بیا روزا ته ولاړم.

هغه مهال ژما د ژوند سختې تر ینې لحظې شمیرل کیدې. بې اندازې مې آرزو او میلان درلود چې کنتس و خپل څان ته را واړوی کړم د هغه میلان او دلچسپی ژما د غرور او تکبر، احساسا او عواطفو څخه پیدا شوی وه.

«نور بیا»

# د کندهار مجله!

ژواك

د ادي چه ډېرو ځتورو وسنه يا همه وخت د کندهار مجلې ته مقاله ليکم کله چې ماد عمر په خزان ـ

کې د نوي جمهوريت د بهار غوټۍ پرغوړېدلو و پښم په دې مجلې کې ما په ټبر ژاړه راڅېم کې دزړه

د زخمونو کرږې نصر بړو لي مگر ان؟

ان دزړه د ښادولو هيلې

منعکس کېدل غواړم ـ دلته په دې دوباړه چك غوږي کې، او دلته چې د مېږ وس سره د مېږ و پښتنو

د ملي ازمانونو د ابستلو هڅه ترسره کوي د مېـ دلته چې دمې ند دېرې باد، زمانه ناڅوي او

مستوي ږ، دلته دادې د کندهار مجلې ته څه ليکم.

د کندهار مجه ۱۸ پيږي مجله

کې ليکوالکي کندهار چې، د پرون کندهار او د سبا کندهار.

د پرون په کندهار کې تاريخي

او ثقافي وياړنې هڅه ويارنه چې محمود ميږني افا بوب مېږي په توره ښوول غوښتل او ما کو

سليمان د ښر، مرغلو ـ پير محمد، شمس الدين او حنان د شعر په پيودلو سرو لعلونو کندهار ته دوياړ برخ ور کوله ـ زمونږ د پرون دنيا وه او د پرون متاع. د لوي احمد د توري وقلم ياد!!!

داد کندهار د پرون د لمر

پلوشې نکه وه مگر ان، او د ان

برخه؟ په ان کې دادو ياړ اتل داؤد دی، قهرمان داؤد او دافغان اولس د ارمانونو د ابستلو ستر قهرمان!

د کندهار په مجله کې به کندهاري ليکوال څه وليکي؟

د پرونۍ تاريخ زوږ افتخار په ان روڼې تاندې هيلې؟ و يخچې دا په عمر زوږ، د تاندو هيلو

ډېکاره کول پرخوادي، ځکه که د پرون وياړ يا دزړه تاريخ نقش د ياد او افتخار برخه وي، نو

د ا په ځوانو هيلو د سرته رسيدلو مي اعتبا ته هم د قلم د خاوند په صفت ملي او افغاني وظيفه گڼم

ځواني هيلې او ځوان جمهوريت ځو مرې خوږدې او ځو مري خوندور ولې؟

دا يو ښکاره دی او مدعا حقه، ځکه جمهوريت هغې لري او معنې يې د قولو ژواند دقولو دپاره د قولو ليکنې غې د قولو دپاره د ... حقيقت ځوك ته خوښوي؟ ددې حقيقت منه د هر چا زړه سو په ده دزړه د سوبې لري ته به ځوك قوسه ته لري؟

مرږده په رنگين تاريخ خاوندان

يو خو دا چې رنگين تاريخ جوړ کړو د اهيله به هر نگه ميره کړو.

رنگين تاريخ هر نگه جوړېږي؟

ــــوال ـ آ يــــا هـر ځــوك دا نـــا ريخ جـــو ړولا ی ســـی؟

نه ځو کسه چې خپله خوښي د نورو ښادي کې ولټي.

قولنه او دقولني ښادي د قولو ده او په قولو د ې حقې مدعا غاړه بايد

کېښي دوه چې يې کېږي د ... چا په خاطر؟ د مقه ملت په خاطر چې تاريخ يې جوړ ولای شوای او جوړ کړی يې دی.

د دغه ملت او د دغه ملت او د دغه ټبر د ښه دي په خاطر.

نو ې جمهوريت ـ بلې نوي جمهوريت

څه غوږي او د چا څه؟

غوږي چې قول، قولو غواړي او دغه ملت، دغه ټبر ـ بياد تاريخ جوړولو

هڅه وکړي د جمهوري نظام په مله او ملکړتيا.

انورزی

# پسرلی

دگلونو گلزارنو دپسرلیو په
راتلوسره سپرلی پسرلی دنوړو
سره څرګند تو پیرلری داپسرلی

په داسې وخت کې راغی چې زموږ
پرهیواد د جمهوریت ملی او
مترقی نظام خپلی زرینې پلوشې

خپرې کړې دی پسرلی راغی
دبهار پرفیضه موسم په رسیدلو
سره پر ټولو کائناتو باندې

دنوی ژوندانه وحلیدی خروله
دختو،او باغونه زرغونه سول
اودنوی ژوند په فعالیت ئې پیل

وکړ، میوه ارونکو ونو او
نیالګیو په سپینو او رنګینو
شګوفو باندې ځانونه سینګار

کړه!

پردېسو بلبلانو بیا دګلشن
پرلور پروازو نه اغاز کړل.

ددښت م...ځانو دنوی ژوند دپیلیدو
دزمزمې وږغولی.

دسهار نسیم دسپیرو ګرولدو

دنیالګیو او ګلانو دژوندی کولو
او بیدارولو دپاره دخپلو روح
بخښونکو وږمو په نثارولو سره

دبڼ او بیدیا څیرې ته بدلون
ورکې.

کوچیان دغرو او دښتو په

لوری وکوچیدل او دشنو غرونو
په لمنو ددوړواو بو دچینو پرغاړه
ئې خپلې تورې کیږدۍ ودرولې،

دپسو رمې په شنو دښتو کې تیتې
سوې ددښت اودامان وچواو بوټو
دڅانو څخه خزان وهلې جامې لیرې

ټولو کائناتو شنې او بخملی جامې
واغوستلې.

دغرونو او شنو دښتو هوسۍ

بیاد پسرلی په راتلو په هوس او
مستی ونڅیدلی. دځاټول ګلونو
دسپیرو خاورو څخه سرونه پورته

کړل او دښترنه ئې په بخملی فرش
رنګینه کړه.

څرنګه چې دکاینا تو خالق

دنظام د برابرۍ او دمخلوقاتو
دپایښت او بقا دپاره په هرخزان
پسې بهار هم پیدا کړی دی

نو زموږ دګران هیواد دخزان
وهلې خاورې او ددې باشهامته
نجیب ولس دګلونو دآرزوګانو

غوټۍ هم پرغوړیدو شوې او
دجمهوریت د بهار په راتلو ئې
دکاونو دارمانو غوټۍ وسپړیدلې.

اوس چې دجمهوریت پسرلي
دنوي ژوند دنوی رمزونو اوډیفورد
مونو سره د افغان ولس پر افق

پلوشې خپرې کړې دی نو پرټولو
هیوادوالو په تیره پر ځوانانو
باندې لازمه ده چې ددغه پاردښته

امنت څخه په هر وخت کې دخپلو
پراه پسې زیار ګاللو اونه ستړی
کیدو نکو هلو ځلو په اترخپل

د هیواد د آبادۍ او ترقۍ دپاره
دهیڅ ډول ایثاراو فداکارۍ څخه
ځانونه ونه سپموي.

.................................................

د ۱۴ مخ پاته

دادمزماغوښتنه په کندهار کې دکندهار
دوايه او ژاده څخه چې دا حقیقت
لکه څنګه چې مثلی یی دی په هغه ډول

دعمل مصداق ورکړي. د کندهار دمجلې
ویونکی دي دمرت ته دا یولم اودا به وي
زما بلنه ددې مجلود لیکوتکو دقلم

دغرو څخه چې موږ تاریخ جوړو-
دافغان تاریخ د جمهوریت په ګټوده
امن کې. هغه تاریخ چې دسیا ژوی موږ

یاد کړی ومونمانځی، دانمانځنه دسبا
دژوندونوهغه وخت چې موږ د تاریخ
په جوړولو-ددانه تاریخ په جوړولو

کې برخه واخلو، ټول وزه اوژوړه، داده
زما د تلوسې برخه چې د تاریخي کندهار
په مجله کې تصویر یېږی او دهو الفاظو

په وزړو وږو ولوکې.

د کندهار مجلې دا وظیفه لري او
دغه یې مآل او غایه بولم تاندی هیلی،

دټولو هیلی په ګډه سر ته درسیدل-
دنوي ځوان جمهوریت تر رهبری لاندې-
د دي زموږ اصیل ارمانې دانسان او

افغان په خاطر!

.................................................

## عالی فکر

دلوړ همت خاوند دژوند انه دلاری
په پیچومو کښې هیڅکله دمایوسی سره له
مخامخ کیږي. (ناپلیون)

# شارل رنویه




پښتو کوونکی (طالب)

«رنویه» د ۱۸۱۵ څخه تر ۱۹۰۳م کال پورې یعنې ۸۵ کاله ژوندی کړی دی. د تحصیل تر دورې وروسته ئې تدریس او تعلیم ته دی کړی خو د تألیفاتو او تصنیفاتو په وسیله ئې چې بر د علم علاقمندان مستفید کړی دی. دی د نولسمې پېړۍ په دوهمه نیمایي کې د فرانسې د معتبرو حکماوو څخه شمېرل شوی دی او ده له ښوونو څخه یوه نوې فلسفه منځ ته راغله چې هغه ئې د نقادۍ د فلسفې تجدید بللی دی.

څرنګه چې د نقادۍ فلسفې ذکر کېږي نو «کانت» را یاد شي البته رنویه د هغه المانی فیلسوف عقاید منلي وه خو «هیوم» او «لایبنیتس» ته ئې هم مراجعه کړې ده، په دې خصوصیت چې یوازې تعقل ئې د عقایدو مبنا نه بلل، بلکه عاطفه، ذوق او ایمان ئې هم په هغه کې دخیل کړی دی مګر ایمان په مطلقه معنی، نه ایمان لرل و یوه خاص او معین دیانت ته.

رنویه وایي د عدم تناقض اصل له لاسه نشو ورکولای او ناچاره یو چې یو د دوه متناقض امرونو نه باید ومنو.

د څه موده کر کې چې رنویه د کانت د نقادۍ فلسفه منلې او تجدید کړې ده. خو په هغه کې ئې تصرفات هم کړي دي. لومړی دا چې کانت به ویل هغه څه چې موږ ئې درک کوو یوازې عوارض او حوادث دي او زموږ عقل حکم کوي چې داسې ذوات هم شته چې موږ هغه نشو درک کولای. مګر رنویه د هغو ذواتو د وجود څخه منکر دی او د هیوم په شان وایي چې له هغو حوادثو څخه چې موږ ئې درک کوو نور څه موږ ته معلوم نه دي او حتی زموږ نفس هم له حوادثو څخه دی. نو بنا پر دغه وجود په مدرک او مدرکاتو پورې منحصر دی.

حوادث او مقولات په قالب کې توليږي او د هغو مطابق تصویرونه موږ ته جوړیږي نو د حوادثو او تصوراتو سر بېره یا د هغو شا ته، باید نور ذوات او حقایق چې د هغو حقایقو مبناوې، فرض کړو.

البته ګران لوستونکي متوجه دي چې د کانت او رنویه په فلسفه کې له تصوراتو څخه مقصد هغه حقایق دي چې د ذهن په هنداره کې مصور او مجسم کېږي نه دا چې موهومي او مخیل وي د هغه سبب دی چې رنویه سره د دې عقیدې د تشکیک په چوله کې نه راوستل کیږي.

په دې اساس رنویه د کانت پیرو دی خو د دغه قید سره چې له ذاتو څخه منکر دی او دغه رنګ د مقولاتو په ټاکلو او شمېر کې د هغه څخه اختلاف لري بیا هم عقیده لري چې د ټولو مقولاتو رأس د شخصیت تصور دی او نور مقولات کم و کیف او وضع بدل کیږي او سکون ئې مقولات دي.

د رنویه په عقیده د جهان شیانو او امورو تر منځ پیوند او اتصال نشته او هغه څه چې په دې هکله ایدل کیږي هغه د انسان د ذهن خطا تلقي کوي. دی وایي:

«په حقیقت کې امور او اشیا ټول منفصل دي» افراد اصل بولي او اجتماعي

«پاته په ۲۹ مخ کې»

# دتورو زلفو شهید

چې شهید د تورو زلفو په خنجر شي
خوشنودي ئې د سرو شونډو په کوثر شي
چې را یاد ئې سپین رخسار او دراز موګان کړم
هغه دم مې زړه سپند، سینه مجمر شي
هغه لیب خاطر مې الوزي په ګلو
که د ترکو سنبل زلفې ئې شهپر شي
د تا صح په نصیحت به منع نه شم
که هزار ځله مې ورور او برادر شي
د رقیب او زما صلح سره نشته
که مو چېرې لاس و دست د بله برشي
صبوري او قراري له ما خطا ده
تر هغه ساعته پورې چې محشر شي
تیر ساعت به د هیچا په لاس کښېنوزي
مګر تللي اشنا بیا په اشنا ور شي
خوبرویان به سپوږمۍ ټوکې د او اخلي
که «رحمان» کچکول په لاس کړ قلندر شي

«رحمان بابا»

# رنګین خیال

د مغرب لمنه سره ده
زړې لمر په ډوبېدو دی
د ماښام د لیلې زلفې
په جهان په خورېدو دی
کجاوې د سرو ورېځو
په مغرب کې وي رڼا نه
یو وړو کې قافله وه
نامعلوم ځای ته روانه
د جنت په شان منظر چې
په رنګین خیال د شاعر شي
دژوندون په لویه لار کې
دا یو ځای دوه مسافر شي
نا اشناوې یو له بله
خو اشنا غوندې ښکارېږي
یو په بل د دواړو سترګې
چې په مینه کې خوږېږي
دعشق ساز په تنید و شي
چې یو بل ته په کتو شي
دا زمانه وي لا نیمګړې
چې بیا لار په بېلېدو شي



### تاو کړې زلفې

مژګان د یار مې په سترګو ځړې
زخمونه د زړه کې سپړې
نوې دلبر دی لوی منکر کا
چې ئې په لاس دي زلفې تاو کړې

# د شمس الدین کاکړ

## ښکلي څلوریځې

بلبله ولې ترک د احسان کړې
د ګل په ځنګ کې آه و افغان کړې
ان به څیر ګوره د ګل و مخ ته
پردا ساعت به سبا ارمان کړې

ما چې لید لی کمر بار یکه
کوږه د سترګو مې شوه تاریکه

و ښځه چې پر بوزي د چا په سترګو
هر کله او ښکې څڅي جاریکه

«شمس الدین»

# حریت

دمجنون ژوندون په هغه وی چې لیلا مری
هغه په کار دی تش کالبد چې ژړه دچا مری

ژړه چې بوه ده دا دنړو په غالب کی
خدای په ومه کړی چې به داغ بوه دچا مری

چې مرغه ولاړه سی قفس د ماتیدو دی
که په ژړه مری تش کړ گل دی لا پښوا مری

هیڅ ممکن نه دی چا بست د هغی بیړی
ژړه چې مری کالبد مجبور دی خامخا مری

حریت د هر ملت د بدن ژړه دی
که دا نه وی هم ملت مری هم بقا مری

چې د بل دا سارت په لومه اخته سی
په هغو ژړه و کی غیرت خودی، فنا مری

# خپلواکی

آسمانی عالی نعمت دی چې بشر ته عنایت ی
خپلواکی نوم باندی کیږی دی ژوند دخلکو په راحت سی

که په ویښو سی تر لاسه، که په سرو ی، ده ارزانه
هکه ژوند بی خپلواکی په دا انسان په هان آفت سی.

(ط)

# اولنه مچه

په دی باندی چې په غوږه کی خبری ور ته کوم هان ته می
راتودی کړه دی هم غوږ دا نه کی.

ده نی نلوسی د عشق تر نزاکت تیر کړم دحیا
پرده می خیری کړه په غرړه کی می هیڅ ور ته وانه و بل
خو په چړ ره ناقراری می دهغی دچا بسته باڼه خو هغه ده هو سه
چ که مچه واخسته.

هکی اربابه ودر پدل هکه زما هغه بی دساده عشق
هیله در لوده خو ددغی بی حیا بی توقع بی هیڅ نه وه.

په ژړه کی خو شاله سره په ستر گو کی بی د عشق
او هوس بر یښنا وهلیدل – تر لاس بی تینګک کړم چا بی ژړه
بی غوښت چې بیا د غه عمل تکرار د سرو لی دا عمل ژه
و شرمیدم لاس می هینی کش کی ولاړم او دامی د کور
په دروازه کی یو اڅی پری ښول.

# وچی شونډی

یار که له نقابه میر هن روښن جمال کړی
بدر به د حسن په شغلو ضعیف هلال کړی

خیال د سرو قد که خرامان سی په چمن کی
گل په د گلابو تر قدم لاندی پایمال کړی

زلفی که شانه په گلستان کی گلهند ر کا
روح دبلبلو په نسیم سره خوشحال کړی

حکم چې مژګان کا په فتوی د شوخو ستر گو
خون په ده اقو په خمزو سره حلال کړی

تل مړ له رقیبه یار ویښنا دفراق نغوږی
په گوزی دی بیار ته چې خبری د وصال کړی

تاسته یم وچی شونډی د ساقی و پیمانی ته
کله په فیاض دا باندی فیض د زلال کړی

خراست بی د وصال یا صیحدم له پیرمحمد کړم
دریغه که دعامی مستجابه ذوالجلال کړی

«پیر محمد»

# هنـــر او ادب

# دخپلواکی په هکله

## غوره مقولی

خپلواکی په ویښو تر لاسه کیږی او په ویښو ساتل کیږی.



خپلواکی د هر قام او ملت د بقا او دوام ضامن ده.



خپلواکی که د خطره سره مخامخ سی نو ژوند هم
د خطره سره مخامخ کیږی



خپلواکی تر ژوند خوږه ده هکه انسان د خپلواکی
په لار کو په سر بازی کوی.



خپلواکی باید د یوه قیمتی گوهر غوندی وساتل سی.



تهیه کوونکې : مېرمن ملاله

# د هېواد د خپلواکۍ په لار کې د مېرمنو نقش

د تاریخ په اوږدو کې د موږ ارغونې هېواد هم د لوی دښمن او هېوادو په څېر کله کله د استعمار ګرو قدرتونو تاراج شوی او ګرځېدلی دی. د افغانانو سرتېرو

او ملي قهرمانانو د خپلو مړو په زور د دې سیمې تمامیت پېر ته ژوندی کړی او ساتلی دی او د افغانانو دې نسل پر نسل موږ ته را پرې ایښی دی.

په دغه افتخار کې افغانو پېغلو او مېرمنو د خپلو افغاني ورونو سره اوږه پر اوږه برخه لري.

د جګړې په میدان کې د مېرمنو ګډون په وارو وارو

د افغاني قهرمانانو د بریالیتوب سبب شوی دی. د ځکه دوی په خپلو خوږو آوازو او لنډیو د مای سر بازانو

ستړي بالېري کړي او د هغو د ننګ او غیرت وینه یې پر جوش راوستلې ده. هغو ته یې د مبارزې د پاره او د مېړانې ویښتیا ده. د مثال په ډول د میوند د جګړې قهرمانه پېغله ملاله افغاني غازیان جګړې ته د غلیم په مقابل کې د اچول تشویقوي.

که په میوند کې شهید نه سوې
خدای ږو لالیه بې ننګۍ له دې ساتمه

د دې د غه د وطن له مینې ډک آواز د یو ځل هم په څېر د غلیم په سنګر کوچاودی او د ګرمې په لمبه سوځېدي غازیان یې د (الله اکبر) په یوه آواز اقدام کول

او د دښمن په مورچه ور ټوی کړل او د دښمن فوجونه یې تیت و پرک کړل. له دغه امله دې د میوند د جنګ

د قهرمانانو او ګڼي.

د غه ډګه هرې پښتنې مېرمنې پخپل واده خپل زوی او هرې پېغلې خپل مین ته د وطن د خپلواکۍ په لار

کې د قربانۍ او فداکارۍ توصیه کړې ده. هرې پښتنې مېرمنې په دې لار کې د خپل زوی مړینه خپله سر لوړی بللې او هرې پېغلې د خپل مین ټوپ یا شهادت خپل افتخار

تلقي کړی دی.

د پښتنې مېرمنې د غیرت او شهامت درس له دغو لنډیو څخه چه ترا غرګندیږي!

خال به د یار د وینو کېږدم
چې شینکي باغ کې په ارغوان وشرموینه

توری ټوټې به تورو راسي
چې پرهار ونه دې ګنډم خوله در کومه

که توره اوربل می مېراتیږي
د وطن جنګ دی جانان نه منع کومه

په وینو رنګ توره دې راوړه
را سره په سرو شوندو یې زه دربا که کړمه

په سپین میدان به درسره یم
زه پښتنه له توري نه تښتم مینه
که تښتېدلی پر شا راغلی
پرتا حرام دي زما سرو شوندو سرونه

جانان می سر پر وطن کېښود
په تار د زلفو به کفن ورته ګنډمه

د میرمن ملالۍ لیکنه

# د مور ورځ

مور هغه موجود دی چې د هغې احترام او لمانځنه په هر عصر او زمان او د کال په هره ورځ کې لازمه ده خو بیا هم د غوره هغو هغه یوه ورځ خاص ده چې آسماني موجود په رښتیا د مور د ورځې په نامه لمانځل کیږي.

د مور د ورځې لمانځنه د ډیرې پخوا زمانې نه را هیسې رواج ده د پخواني یونان خلکو یوه ورځ د (مور د لمانځنې) په نامه درلوده چې په دې ورځ به یې رقص او خوشحالي کوله. هر هلك او هره [illegible] تجملي په دې ورځ وظیفه درلوده چې

د ګلانو یو بوقی خپلې مور ته ور کړي. او کله چې مور به هغه ګل واخیست بوی به یې کړ او خپل

اولاد به یې وستایه او دعا به یې ورته وکړه اولاد به د مور پښې ورمچ کړې.

یونانیانو (سیبلي) د خپلو خدایانو اتا بلله او د مور د لمانځنې په ورځ به یې په ټوله یونان

او ترکیه کې د دې تجلیل کاوه او یو پرتمین او با شکوه جشن به یې جوړاوه.

رومیانو د مور په ورځ وسلې ماتولې او د مور د پښو د مچولو په نیت به یې وسلې تللې ځکه دوی په دې عقیده وه چې هیڅ مور نه راضي کېده چې په لښکر کې ګډ دي او سلامتو جوړ دوی چې د تورو او لاد یاد دی او لا د پېرو ژل سي.

په منځنۍ پیړۍ کې د مسیحیت په دوره کې هم د مور د ورځې مراسم پاتې دي

د یکشنبې په ورځ چې هغه ته (مید یست) وایي، ځامن او لوڼې به چو سرو غاتو سره د مور او پلار خصوصاً د مور د پاره کور ته

ورتللي. په دې ورځ باید هر اولاد د ری وار د مور مخ مچ کړي وای. د امریکا متحده ایالاتو په ۱۸۱٤ کال کې د می

د میاشتې اتمه نیټه د مور د ورځې په نامه په رسمیت وپیژندله او د هغه راهیسې هر کال د می د میاشتې په دوهمه یکشنبه یو

لوی جشن په همدې مناسبت جوړیږي. هر کوچنی په دې ورځ سپین ګل د مور پر هیکر مثلوی چې دا پخپله د صفا، تحمل او وفادارۍ نښه ده.

فرانسوي نجونې او هلکان د مور د ورځې په مناسبت اشعار وایي او مینه د

ته یې وړاندې کوي.

الماني نجونې او هلکان په همدې ورځ د میندو د پاره ګلچې راوړي، کور

ته یې ورو ډکوي او په مینه یې خوږ ږی او وایي «مورې وګوره چې ستا حق پیژندونکی اولاد یم»

په چین هیواد کې کوچنیان د ګلو ګیډۍ خپلو میندو ته هدیه کوي.

زموږ په هیواد کې هم د اسلام د مقدس دین د اساساتو په اساس د مور ورځ د هغې د حقوقو او احترام په رعایت لمانځل کیږي. تقریباً

د هغه مودې را په دې خوا د ځینو ورځې رسمیت پیدا کړی دی او زموږ په ګران هیواد کې په خاصو مراسمو سره لمانځل کیږي په دې ځای کې د اقتضا د خبرې داده

چې د دې با ارزښته ورځې د سږ کال جشن په جمهوري نظام کې لمانځل کیږي دا پخپله د میندو او د هغوی د اولادونو د پاره یوه لویه ایکمرغي ده.

په دې نظام کې د میندو وظیفه تر پخوا زیاته درنه او حساسه ده یعنې د میندو وظیفه ده چې د ټولنې د پاره سالم باحساسه او ګټور اشخاص تربیه کړي.

پخوا زموږ په محیط کې چې ښځې ته هلك په کوم شخصیت نه و قایل او هغه یې یو بې ارزښته موجود باله په داسې حال کې چې دوی د همدې موجود پیدا او پرورده بلل کیږي.

د مور احترام او قدردانی د هر اولاد وظیفه ده، ځکه مور په لیکې کې مهربانه تربیه، حساس تربیه او بردباره تربیه موجوده ده.

پولوي عالم وایي «کله چې مور فاسده شي ټولنه هم فاسدیږي د دغې جملې څخه د مور اهمیت او ارزښت د ټولنې په وړاندې ښه ښکاره کیږي له ورا په پر ښې ځکه نو میندو ته د اولادونو د تربیې او ښې روزنې په مکلفیت غواړو چې هیواد د خدمت د پاره ښه تر ښه اولاد وروزي.

# ځوانان

تهیه کوونکی: رحمت الله «مړوند»

## خپلواکي په ځوان قوت تر لاسه سوې ده

کله چې زموږ هېواد د استعمار په منګلو کې ګیر او تر پردې سلطې لاندې راغلی و، افغاني ځوانان د استعمار او استثمار پر ضد راوپارېدل او په قیام ئې لاس پورې کړ داسې قیام چې په حقیقت کې ئې د اوږدې بلا د پاره په خپل ځوان قوت او طاقت سره انګلیسي استعمار ګروته. حیرت درس ورکړ او د هغه پوزه لاتر اوسه پورې زموږ د پاکې خاورې د دښمنانو او استعمار د چپانو په زړونو کې پرته ده.

په هغه وخت کې انګلیسي استعمار په زیاتره آسیائي هېوادو کې لاس درلود او په دې خاطر چې دغه استعماري دولت پر خپل تر لاس لاندې سیمو باندې خپل تسلط او دوام ټینګ کړي نو ئې د خپلو استعماري هیلو د تر سره کولو د پاره د پره او خپلواك افغانستان موجودیت لازم و.

ګاڼه. او په دغه سبب ئې زموږ د خپلواك هېواد د بربادۍ او تباهۍ له پاره نقشې او پلانونه طرحه کول. خو افغاني ځوانانو د خپلې کلکې ارادې او آزادۍ غوښتنې د حس په پاللو د هغو ټول پلانونه او نقشې شنډې کړې او هغوی ئې بېرته پر شا تګ ته مجبور کړل. دوی نه غوښتل چې د باندني هېواد لاس ئې پاکې خاورې ته ور اوږد شوی وای.

هر ننګه چې افغاني ځوانان په خپله دلاورۍ او مېړانه له سره د جوزا د میاشتې په ۶۹ نېټه د خپل هېواد د خپلواکۍ د بېرته اخستلو په قیام ئې بریالي سول همدا ډول د تېر کال د سرطان د میاشتې په ۲۶ نېټه هم د خپل ملي مشر ښاغلي محمد داؤد تر لارښوونې او د ځوان اردو په سربښندنه ئې د افغانستان زوړ نظام سرکوب او پر ځای ئې د جمهوریت ملي او مترقي نظام چې هدف او غایه ئې د بنیادي تحولاتو راوستل او د ملي ارمانونو تحقق دی منځ ته راوستی.

موږ په داسې حال کې چې د غه دورو لوړو دغو یادونه او درناوی کوو د هغو شهیدانو و یاد کوو اروحو ته چې د هېواد د خپلواکۍ په لار کې ئې د شهادت جامونه څښلي دي درود وایږو د خپلواکۍ د غازیانو او د جمهوري عالي نظام د ملي رهبر او فدا کاره ځوانانو په قدر یادونه کوو او د خپلواکۍ د لویې ورځې د کالیزې له کبله د دولت رئیس او صدر اعظم ښاغلي محمد داؤد د دغو ښېګڼو ملګرو، ځوان او زړه ور اردو او د افغان نجیب ولس ته مبارکي وایو.

تل دې وي خپلواکي او جمهوریت

آباد دې وي افغانستان

سر لوړی دې وي زموږ ملي مشر

پښتو کونکی عبدالله «یوسفی»

# دځوانانو د مطالعې او پلټنې حس باید ژوندی او هغوی مطالعې ته تشویق کړو

نامتو لیکوال او الفرسکاټ وایی «هغه علم او پوهه په ژوند کې ژموږ په درد خوري چې ژموږ په شخصي ذوق او تلاښ ترلاسه شوي وي.»

«چارلز داروین» هغه څوک چې د خپل تحصیل دوره یې د کمبرج او اډینبورګ په پوهنتونو کې سرته رسولې ده ویلي دي: «هر هغه څه چې ما زده کړي دي زما د شخصي او خصوصي مطالعې نتیجه ده نه د پوهنتونو د استادانو څورنه،»

«توماس جر» چې د کیمیا د علم په برخه کې ګټوري څیړنې کړي دي پی له دې چې پوهنځی او یا پوهنځی و لولی د خپلو خصوصي تحصیلاتو په برکت یې ځان هغه مقام ته رسولی چې همدا

ډول «ادوارد برنی» دنیا نامتو د پوهنځي رئیس صرف د خپلو خصوصي مطالعو، همت او استقامت له امله د استادۍ مقام حاصل کړ او د هغه د صحبت ټولو زده کوونکو ته داوو چې که غواړئ پر دې مقام ته ورسیږئ پر ازادو پوهنځیو پر لوستو او بالادی قناعت مه کوی په هغه ځانګه کی چې په نظر کی ئی لری په شخصي څیړنو او مطالعاتو لاس پوری کړی.

د هغه په څیر ارزښت ناکه وصیت دی او حقیقت هم دا ثابته کړې ده چې ټوله انکشافات او علمي پرمختیا د شخصي پلټنو او کنجکاوۍ محصول دي چې په ئی هم د ښوونځي په درسي پلان کې شامل نه دي.

همدا رنګه تومو ډی تائید کړی ده او ویلی ئی دی «بوهل پیا تاسو ته نصیحت کوم چې د ښوونځي او پوهنځي د درسونو زده کړه د خصوصي مطالعې او تحقیقاتو په نسبت زیات ګټور نه دي خو په دې شرط چې د غه مطالعات او څیړنی په اصولي او صحیح ډول سرته ورسول سي»

«رنوس جویت» چې د مطالعې په فن کې ئی زیات تحقیق کړی دی وائی: «هغه څوک چې په یو نا کلی موضوع کې خپله مطالعه کوي د هغه بی خالی الوتونکي مرغه معنی لري چې له یوه څانګه څخه بل څانګ ته الوزي یعنی هر ډول کتاب چې ئی لاس ته ورسي لولی او خپل وخت پرله دي چې کمه ګټه یې ځانته ورسولی وی، عبث تیروی.»

پیاوړی مخترع اډیسن فقط دری میاشتی په ښوونځی کی درس لوستلی دی او تردری میاشتو وروسته له ښوونځی څخه د نا پوهی او کرته ذهنی له کبله خارج سو تر هغه وروسته ئی لیک او لوست د خپلی مور څخه زده کړه او له د هغه وخته څخه ئی د مطالعې سره مینه پیدا سوه څکه نو هره ورځ به د خپلی سیمی تر دی کتابخانی ته د کتابونو د مطالعې دپاره تللی او د هري قفسی په باب په یی کتاب له سره څخه ترپایه پا به لوستی.

یوه ورځ د کتابخانی مدیر پوښتنه وکړه چې تراوسه پوری دی څو جلده کتابونه لوستی دي په جواب کی یی ورته وویل د کتابخانی پنځلس پوړه کتابونه لوستی دی، مګر دکه چې بی هدفه او نا کلی موضوع څخه یې د غه کتابونه لوستی و نو د هغه ټول وخت یی بی فایدې تیرشوی او کومه ګټه ئی نه وه ځنی اخیستی. په دې وخت کی د کتابخانی مدیر توموډی ته لارښوونه وکړه او ښوونه یې ورته وکړه چې یو نا کلی موضوع انتخاب کړه او د هغې موضوع په شاوخوا کې په مطالعه لاس پورې کړه

د غه ډول ئی وکړه او د هغی موضوع په هکله کی چې علاقه یی ورسره درلوده په مطالعه پیل وکړ څو یو شمیر اختراعات

پاته په ۲۹ مخ کی

د سردار شاه ترجمه او څیړنه:

# مارکوپولو د چین د خاقان په دربار کې

## د ده د سفر سپړی او تودی

### (څلورمه برخه)

مارکوپولو ورسته له هغه چې د سماترا له لارې تر ډیرو ټکالیفو وروسته سیلون ته ورسیدی نو د هغه ځای څخه بې هندته د تللو عزم وکې او مخ پر هندرهی شو. لومړې بې د هند جنوبی ځایونه ولیدل چې څینی مختلف سلطنتونه هلته مستقر شوی وه او هری پاچاهی به د ځان دپاره بیل قانون دراود. خود خلکو وضعیت په عمومی صورت به ډولو ځایو کښې یو ډول ښکاریدی.

په هند داس کی مارکوپولو ولیدل چې خلکو به ګڼډل شوی کالی نه اغوستل او یوازی بې یو لنګ څخه استفاده کول. حتی پاچاهانو بې هم کوم خاص لباس نه درلودی. خو فقط د دوی لباس د څینو علامو او ډیورانو په واسطه ښکلی شوی ؤ جواهرات او څینی شیان بې په غاړه او لاسو کښې اچول.

په لاسو به ئې د ښکلې غوندی طلایی کړی وی او ډیر قیمتی جواهرات لکه الماس او یاقوت به پکښې کار شوی وه ـ څینی داسې انګشتری به بې په لاس کولی چې قیمت به یې بی نهایته زیات ؤ.

کوم شی چې په هند کې د مارکوپولو دزیاتی حیرانتیا وړ ګرزیدلی دی هغه داؤ د ښځو چې به میړو له مړه کیدل نو ښځو به هم ځانونه په اور کی ورسره سوځل او هغو ښځو ته ستیانی ویل کیدی کله چې به د ښځې د میړه جسد پر اور کښیښول سو نو ماندینې به یې هم ځان پراور د هغه سره یو ځای کباباوه او



مارکوپولو

هغو ښځو چې د سوځیدلو جرئت به ئی نه درلودی ـ ملامتی ورا وښتل او نوم به ئی بد یدی.

د دی ځای د خلکو یو بل رسم و رواج داؤ چې خپلی اوښی به یې د اندر په ډول معبود و ته ورړاندی کولی مارکوپولو په هند کی جوګیان هم لیدلی دی چې شمیر به یې خورا ډیر ؤ ـ د دوی په څینی داسی کارونه کول چې عادتاً محال وه.

جوګيانو به تر عادي خلکو ډېر ژوند کاوه او تر ۱۵۰ کلو به يې عمر رسېدی. مارکو پولو حيران ؤ چې جوګيان ولې دومره اوږد ژوند لري. ده فکر کاوه چې ښايي د هغو ژوند ډېر خوشحاله وي او بل د غذا او هغه استفاده کول وي.

مارکو پولو په هند او سيلون کې يوه بل شي ته پام سوی دی او وايي چې مرغلرې او عنبر به هغه وخت کښې په هندي سواحلو کښې زيات پيدا کېدل. مرغلرې به يې د غوټه وهونکو په واسطه د سيند څخه را ايستلې او عنبر به يې د نهنګانو د نسو څخه تر لاسه کول دا عنبر به اکثر آزادو يا ته تلل او يا به په خپله په هند کښې استعمالېدل او د هند د تجارت يو لوی قلم ؤ.

څو لنډې دا چې د اوږدې د مارکو پولو د سفر او د وستي وږدې وې چې ده په هند کښې تېرولې ددې سفر تر ختمېدو وروسته دی چين ته ځي او د خان څخه د تګ اجازه اخلي.

### وینس ته د مارکو پولو ستنېدل.

مارکو پولو د هند تر سفر وروسته چې د يوه هيئت په مشرۍ استول شوی ؤ، په ۱۲۸۷ کې بېرته پيکينګ ته ستون سو او زياته اندازه معلومات يې د قوبلای خان ته ور کړه، چې د قوبلای خان د علاقې وړ وګرځېدل.

مارکو پولو په دې سفر کې ډېر ځايونه ولېدل هر ځای به يې تفتيش کاوه، ځکه د خان له خوا استول شوی ؤ، او په هر ځای کې به يې احترام کېدی. د بلې خوا ګې ډېرې پيسې هم ور ګټلې. ځکه ده ډېر معاش اخيستی چې په نتيجه کښې د ډېر ثروت خاوند شو. په هر حال د يوې خوا د ده پيسې ډېرې شوې او د بلې خوا د کور د بيا ليدو تنده ور ته پيدا شوه نو غوښتل يې چې د دې ثروت په لرلو سره پاته عمر په خپل وطن کې په عيش او آرام سره تېر کړي. او له دې څخه بېرېدی که چېرې قوبلای خان مړ شي نو يو ګډوډي به جوړه سي او ده ته به د تګ او د پيسو د وړلو اجازه ور نه کړه شي. نو هغوی غلښتنه وه چې پولوګانو قوبلای خان ته د تګ پيشنهاد وکړ ـ مګر هغه وخت چې دوی دا خبره و خان ته ور کړه، خان منفي جواب ور کړ او ور ته يې ويل «څه کوی چې ځی؟ هر څه طلا او پيسې چې غواړی هغه دلته ميلاوېږي.»

دوی ور ته وويل چې ښځې او اولادونه مو هلته پاته دي، بايد ور لاړ سو خو هر څه ټينګار چې يې وکړ د خان د منفي جواب سره مخامخ سول نو دوی مجبوراً د هغه په مقابل کښې چُپه خوله ونيول او اضافه يې څه ونه ويل. مګر تصادفی په دې وخت کښې د فارس د حکمران (ارغوان خان) له خوا څينې قاصدان د قوبلای خان دربار ته راورسېدل قاصدانو وويل چې د حکمران ښځه (بولګانا) مړه شوې ده او د هغې د وصيت په اساس بايد حکمران د دې تر مرګ وروسته پرته له يوې مغولي ښځې څخه. بله ښځه و نه کړي او هيله ده چې لوی خان قوبلای خان به يوه ښځه د قاصدانو سره هغه ته ور استوي. قوبلای خان چې خپل وراره ډېر باندې ګران ؤ د يوې قبيلې د مشهور سړي ۱۷ کلنه لور چې «کوکاچين» نومېدل، ور وغوښتل او قاصدانو ته يې وويل چې بايد دا ښځه ور ور سوي. نو هغه ؤ چې د سفر وسايل تيار سره او دوی د وچې له لارې و فارس ته رهي شول مګر بسله ۸ مياشتې لارې وهلو نه پر لارې د څينو بندېزونو سره چې موجود وه بېرته پيکينګ ته ستانه سول ـ او په دې فکر کښې شول چې بايد هر رنګه چې ځانونه و فارس ته ورسوي. په دې وخت کې ؤ چې قاصدان د مارکو پولو او د هغه د کاکا او پلار سره اشنا کېږي، پولوګان د دوی څخه وغوښتل چې قوبلای خان ته ووايي چې پولوګان دې د دوی د رهنمايی په خاطر پرېږدي چې د دوی سره ولاړ شي، هغه ؤ چې قاصدانو دا خبره تر لوی خان پوری ورسول.

قوبلای خان موافقه ور کړل چې پولو دې هم د دوی سره ولاړ شي. او نې پولوګانو ته زياتې طلاوې او پيسې ور کړې او د هغه رنګه يې غني نور وسايل ور ته برابر کړل څو دوی ځان په سلامتی خپل هدف ته ورسوي. د انګلستان، فرانسې او ايټاليې د حکومتونو او د پاپ لپاره يې

مکتبونه‌ورو لیکل او په لاس بې
وکړل چې باید ودروي شوي.
۱۴ کښتۍ یې ورته برابرې او د بحر
لارې یې اجازه ورکړه چې قاصدان
او څښتنه‌وفارس او خپل ځانونه و ینس
ته‌ورسوی نو هغه ځه پسله ۲۰ کاله تم
کیدو څخه په چین کښې مخ پر کور روان
شول.

دهغوی بهرته اود هغه‌لاری بیا
دفارس دخلیج ته ولاړه کله چې
دفارس ته‌ورسیدل‌ویې لیدل چې دفارس
حکمران‌مړ شودی ارغښته دوی ته‌پاته
شول مګر بیا هم دوی ښځه دهغه
وکوزنی ته‌وسپارل او مخ پر وینس‌رهی
شول خو په‌لار کښې یې واوریدل چې
قوبلای‌خان‌مړ سودوی شکر وکی چه
دوغ دچین څخه را ووتل که چیری
دوی هلته‌و ای او خاقان‌مړ سوی‌وای
د تګ‌امکان یې نه‌ور لیږو.

په‌هر حال‌وخپل تګ ته‌یې ادامه
ورکړه ـ مګر ددوی سره هغه قیمتي
سوغاتونه چې قوبلای خان ورکړي‌وه
دپیرو خلکو دهغو دپلاس ته‌را وړه‌لو
هڅه‌کول لیکن د څو ګنه چې دپیرو
محافظینوله‌خوا ساتل کیدل‌، چاونه
سوای کولای چې هغه شیان څنی
وا خلي.

پسله‌هغه مودی دوی او غړمې
دپیری دنیا اود ادا یې سر خپل کور
او وطن ته‌ور سیدل.

مارکوپولو ۲۹ کاله‌نور ژوندی
و، خوده خپل ګذارشات دیوه کتاب
په‌ډول په‌جینوا کې ولیکلې دی. او دا چې
دهو لی خپل کتاب په‌جینوا کښې ولیکی

علت یې دا و چې دیوه جنګ په نتیجه
کښې چې د وینس او او دجینوا د
خلکو تر منځ پېښ شوی و ـ دی دجنګي
بندی په‌ډول ونیول شوا و په‌یوه
بندی خانه کښې د دری کالو
لپاره بندي شو ـ په‌بندی‌خانه
کښې دیوه‌بل ملګری سره‌چې
(رستی‌کولو) نو مېدی آشنا شو
هغه‌ یې لیکوال و او دده‌د ژوند
ګذارشات یې دیوه کتاب په‌ډول
ولیکل‌او کله چې مارکوپولو
تردری کاله بندوروسته دبندی
خلاص‌شو هغه کتاب یې دهانه سره
وینس ته‌را وړه‌ی.

په‌وینس کښې تر یو ځه‌وخت پوری
ژوندی‌ږ دده ځخه پوری اولاده
چې لونې وی پاته‌شوی دی. دپولو
قبر معلوم نه‌دی ـ مګر دونه ویل
کېږی چې‌په‌دوه‌می ی دپسان لورنزا
په کلیسا کښې ښخ شو ی دی.

په‌هرصورت‌مار کو پو لو
اروپا ته‌دسوغات په‌ډول چه‌آینده
یې ددوی لپار، په‌ختیځ کښې به
دردو خوړل دهغه‌تر دی چې
اروپائیان‌شر ق ته‌راشي دهغه
لادشرقپا نود تمدن او اخلاقو
څخه‌خبر شوی وه‌ـ نو یې ددوی
دا وحبی له کبله وکولای‌شوای
دشرق‌خلک دهانمریان او د
هغو‌مملکتو ته خپل مستعمری
وګرزوی.

# دلویانو خبری

که‌د هغې دري صفتونه‌او اری امید
دار‌ه او سه.
حیا‌، امانت او رښتیا که چیری
څوک دغه صفتونه و اری
له هغه نه‌ښه امید کیدلای
شی.

حضرت محمد(ص)

اندیښنه کول آسانه کار دی
خو عمل کول مشکل کار دی
دې لوی نه سخت کارونه هغه
څه چې اندیښنه یې کوو عمل
کول دي.

ګویته

نیکمرغه هغه څوک دي چې
خدای له‌مینی او عاطفې ډک زړه
ورکړی وی.

ویکتور هوګو

دبشری ژړ لنی نیکمرغی
به دې بوری اړه نلری چې
ډیره شتمنی او ثروت ولری
بلکه دغه نعمت یو ازی دښو
اخلاقو له‌لاری لاس ته‌را تلای
شی.

لاروشفو کولد

د نیکمرغی یوه ښه لاره
همدا ده چې سړی په دی باور
ولری چې زه نیکمرغه یم

(. .)

شیطان هغه څوک څجا لت
کولی شی چې حقیقت یې له ویری
بیان کړی.

(شکسپیر)

«د۵مخ پاته»

# دیوه قهرمان ملت...

او دا ځمونږ د پاره یوه وجیبه ده، ملی وجیبه، هغه وجیبه چی د یوه لوی دین په مقابل کی دا جرا ده

او د هغه وګړو په مقابل کی چی د قهرمانی سابقه او د تاریخ په اوږدو کی ځموږ سره نه بېلیدونکی سرنوشت لری. همدا رنګه د بشری احساس، پښتنی غیرت، ورورولی د ناموس احترام، شریکه ویښه او

داسې نوری وجهی او تشبیهات سته چې ځمونږ یووالی ټاکی ځکه نو باید د هغه ملاتړ وسی او د ژوند

تر پایه پوری باید د هغه د ساتلو په خاطر مبارزه وسی هغه چول مبارزه چی چپاولګرو او امپریالزم پرستانو د هغه په مقابل کی هیڅ بری نه دی ترلاسه کړی او تل مغلوبه سوی دی.

دد امر درک د تاریخی رسالت فکری شغل او د حق غوښتلو د عالی هدف په حیث ځموږ د خلکو تاریخی ضرورت دی. هغه خلک چی د دی اوس د خپلواکی په روح بخښونکو پلوشو کی او ځموږ د ځوان جمهوریت تر بیرغ لاندی (په سپېڅلی ایمان، پاک زړه او پوره صمیمیت یو بل ته په خوښ

او خوشحالی سره په خلل ناپذیره عزم د اتحاد لاسونه ورکړی او د ګران هیواد افغانستان د یوه ځلانده او امیدواره کرونکی سبا پر لور مخ په وړاندی اوچت ګامونه اخلی.)

د نوی ژوند اساس ایږدی، داسې ژوند چې نوی فکرونه، نوی طریقه، د ازادی او تعقل ډینامیزم

کی د سټاتیک ځلامی له بیخه کاږی او د یوی مترقی او ډینامیکی ټولنی د تدریجی تکامل له پاره

لار اواروی.

تل دی وی خپلواکی او جمهوری

بربالی دی وی ځمونږ د انقلاب لارښود.

(د۴۵مخ پاته)

## د ملی عوامی...

د یو بل خبر له مخی خان عبدالولی خان بیګا په هغه میلمستیا کی برخه واخیستل چی د ده په ویاړ د کندهار د والی ښاغلی محمد ایوب عزیز د خوا شوی وه.

په دغه میلمستیا کی د کندهار د قول اردو قوماندان تورن جنرال ارکان حرب محمد نعیم، د دایرو رئیسانو، د کندهار ښاروال او په کندهار کی اوسیدونکو پښتونستانیانو د خپلو میرمنو سره برخه اخیستی وه.

(د۳مخ پاته)

## خپلواکی ...

په دی چول زمونږ د ګران هیواد د مترقی نهضت کاروان ته ور داخل کړی او د راتلونکی نسل په مقابل کی یی ځموږ

مسئولیت لږ کړی مګر بیاهم ځموږ مسئولیتونه په همدی ځای سر ته نه رسیږی بلکه د جمهوریت ساتنه او پالنه بیاهم له

موږ څخه ایثار او فداکاری غواړی ځکه نو د جمهوری ارمانو د ترسره کیدلو د پاره باید په پوره صداقت او ایمانداری ملا

وتړو و خوګران هیواد د عصر د مترقی او پرمخ تللی کاروان و قطار ته ور داخل کړو.

## دلویانو خبری

بریالیتوب په هغه چا پوری مربوط دی چی د ډېر زیات استقامت ولری.

(ناپلیون)

د همت خاوند به هیڅکله د ژوند په لوړوژورو کښی له نا امیدی سره مخامخ نه شی.

(ناپلیون بناپارت)

خپله اراده یو ازی د وظیفی د سرته رسولو په لاره کښی صرف کړی.

(کنفوسیوس)

عشق لنډېږی خو د ژوند دوران له هغه هم لنډ دی.

(...)

تا که په ژوند کښی د چا او چکی د چی کړی وی، هغه به ستا په مړینه کښی توی شی. (درود ریش)

لیکوال: م عطایی

# اراکوزی سکندریه

## د کندهار په زاړه ښار کې د یوناني دورې د دیوال په کشف د اراکوزی سکندریې موقعیت تثبیت سو

د روان کال د غبرګولي د میاشتې په میاشت کې د کندهار د زاړه تاریخ پوه ورکه پاڼه روښانه سوه.

دا پاڼه د هغه لرغوني دیوال کشف دی چې د کندهار د زاړه ښار د نارنج د کنډو واله په مقابل پیدا سو او د پرتانوي لرغون پوهانو جیست په حفریاتو سره دا خبره تر ډېره حده ثبوت ته ورسېده (چې د یوناني سکندر (سکندریه) یا (الکزاندریه) همدغه د کندهار زوړ ښار دی.

پتولومي یا بطلیموس چې یو یوناني مورخ دی وايي . . کله چې سکندر اریانا ته راغی نو په اراکوزیا کې (د ارغنداب پر غاړه یې) یو ملوی جنګي کلا او ښار جوړ کړ او هغه یې د معمول سره سم د (سکندریې) په نامه یاد کړ.

د سکندر تر تګ وروسته دې ښار موقعیت ورک سو او د کندهار په حوزه کې پنجوایي رونق پیدا کړ، خو ښکه چې پنجوایي د اسلامي دورې په اوایلو کې شهرت و موند نو تر هغه د مخه د پنجوایي په شاوخوا کې محبس ځایونه د ښار په شکل د پور ته سوي وه چې یوې (دیمتریاس) ته چې اغلباً ښځې (دمراسی) د هغه موقعیت ښيي او دا ښار (دیمتریاس) د یونان باختري حکمرانانو په وخت کې جوړ سوی دی.

د سکندریې نوم ښار یې د سکندر تر ملګو ورو سته ورو ورو له یاده وتلی دی او غالباً علت به یې همدا وي چې سکندریو پښتانه چپاولګر ونه بویې خلکو په د هغه ځمکه په ژبه نه درلود او نو د هغه کلا به یې هم پښه نه لیدله او نو نوم به یې له رواجه او بدلی وي.

خو اګه چې سلفو مورخینو د سکندریې ذکر کړی دی او ورو سته یو مورخینو هم دا ښایه کړې ده چې سکندر کله چې اراکوزیا ته ورسید ی دلته یې د اپل کولو په منظور ښار جوړ کړ او په هغه کې یو یوناني حکمران پرېښود ی.

د سکندر په نظامي پلان کې دا خبره پوره ځای لري چې ده به هر ځای فتح کړ نو د خپلو متخصصینو په وسیله به یې یو موقعیت تثبیت کړ او بیا به یې هلته یوه نظامي کلا او یو ښار جوړ اوه او خپل یو منصبدار به یې د حکمران په حیث پرېښود د غه اداري له پاره بالعموم سکندر خپل ژوبل سوي منصبداران چې جګړه به یې نه وای کولای پرېښودل سکندر دلته په حوزه کې هم یو دغسې ښار جوړ کړی دی (ابروننتاری سکندریه) بې ځایه وایو چې په دغه (بروننتاری سکندریه) کې د (سکندر) پر ضد یوه ناکامه کودتا وسوه چې د خپل خوړا نودې ملګری جنرال د (نیول او اعدام یې کړل. تر دغه وروسته سکندر د کندهار

پر خوا (ا) دوان سره او په هغه موده کي چي دلته اوسیدی او د (اراکوزیا سکندریې) ښار یې جوړ کړ.

(ضریر) وایي چي دا (سکندریه) یو لوی نظامی مرکز او ښار ؤ چي په اسیا کي د سکندر په لاس جوړ سوي (۷) ښارو په جمله کي یادیدي.

(ولسن) لیکي چي: «هغه ښارونه چي پتولومي یې د کندهار په ولایت کي یادونه کوي یو هم دغه الکزاندریه (سکندریه) ده چي عموماً اوسنی کندهار گڼل کیږي».

دهند د کبریج تاریخ هم د کندهار زوړ ښار د مقدوني سکندر نظامي کلا او ښار بولي.

سکندر په (۳۲۹ق م) کي کندهار ته راورسیدی او دلته یې د هلمند په حوزه کي د پیښي سوي کود تا تصفیه وکړي..

په افسانوي لحاظ هم دا خبره د تأمل وړ ده اوس هم خلک وایي چي د کندهار زوړ ښار ذوالقرنین سکندر جوړ کړی دی.

اروپایي مورخین چي هر څه د کندهار د لرغوني تاریخ په باب لیکي نو حواله یې یوناني مورخینو ته ده او دا خبره پوره تاییدوي چي د کندهار زوړ ښار د یوناني سکندر په لاس جوړ سوی د سکندریې ښار دی.

اوس چي په تازه حفریاتو کي د سکندر د وخت دیوال کشف شو نو دا حقیقت پوره ثبوت ته رسیږي چي سکندر هم د خپلي نظامي کلا له پاره د دغه ځای موقیعت مناسب بللی ؤ.

په کندهار کي د قبل التاریخ ځایونو تر کشف وروسته چي په منډیگک او کلای سعید کي یې حفریات شویدي نو داسي حدس وهل کیږي چي د کندهار زوړ ښار به هم په قبل التاریخ دوره کي راپورته شوی دی او کله چي سکندر پر دا تیریدی نو پر هغه یې د سکندریې ښار جوړ کړیدی.

په تازه حفریاتو کي چي د کوبي له پښو څخه راپیل شوه او د کو پټول د غره په لمن کي پر مختلفو ځایونو کیندني وشوي نو اکثره د کوشاني دوري قبرونه پیدا شول خو د وستي یې اوږد تاریخ کندوالي ته مخامخ د ښار په زاړه دیوال کي لاندي هغه دیوال کشف شو چي لاندي یوناني سر ښیره کوشاني او پر هغه سر ښیره د اسلامي دوداني دیوال ورته تیر شوی دی.

د یوناني دوداني په دیوال کي ځیني یوناني ټوټي هم پیدا شویدي چي دا هم یو بل ځرگند دلیل دی چي دا ښار د سکندر د وخت د سکندریې ښار مو قیعت ثبوت ته رسوي.

په هر صورت په دي باب پر پیدا سوي اثارو مطالعه او تحقیق کیږي چي ښایي نور حقایق به هم منځ ته راشي.

# د ملغلرو امیل

خوک چي ژبه راز پټ ساتي سلامتي یې ئی په واک کښي وي

❁❁❁

له ایمان نه وروسته لوی نعمت نیکه ښځه ده.

❁❁❁

دري شیان د میني د زیاتولو وسیله وي: اول سلام کول، دوهم په مجلس کښي نورو خلکو ته ځای پریښودل او دریم مخاطب په ښه نوم یادول.

❁❁❁

خدای دي پر هغه چا رحمت وکړي چي زما عیبونه ما ته وایي

❁❁❁

کمي خبري حکمت، لږ خوړاک صحت، لږ خوب عبادت او له عوامو سره کم گډون عافیت دی.

❁❁❁

له سپین ږیرتوب نه مخکښي ځواني او له مرگ نه مخکښي سپین ږیرتوب غنیمت وگڼه (ایسکي وکړه).

❁❁❁

د ظالم خلاصول پر مظلوم ظلم کول دي.

❁❁❁

عدل او انصاف د هر چا له پاره غوره دی، خو د مشرانو له پاره ډیر غوره دی.

# د کندهار د کال ممتازې میندې



### میرمن زهره

میرمن زهره د حاجي قلندر لور د ۱۲۹۱ لمریز کال د وري د میاشتې پر دوهمه نیټه د کندهار د ښار په یوه فامیل کې دنیا ته راغلې ده.

د ۱۵ کالو په عمر یې د ګل محمد سره چې یو متدین سړی ؤ واده وکړ دې خپله ورځنۍ اړتیا د خیاطۍ او ګنډلو له لارې پوره کوله.

د میړه یې په ۱۸ کلونو موده کښې دوی د ۱۲ اولادو خاوندان شول چې د دې جملې څخه یې ۸ کوچنیان د ژوند د ناوړه شرایطو له کبله خپل اجل ته لبیک ویلی دی.

زهره پر میړه پر هغه چې د خپل ورځو کوژده او پالنه په ټول د مسکینۍ په هغه دوره باد کښې چې د دې میړه پر اوږه اخیستی ؤ ورسره یې مرسته کوله

او د ګنډلو په چارو کې یې دده سره اوږه پر اوږه برابره برخه اخیستله ناروغۍ، مسکینۍ او پر له پسې کار ګل محمد د زیاتو مشکلاتو سره مخامخ کړی و خو د ۳۷ کالو

په عمر وفات شو او خپلې ځوانې میرمنې ته یې ۶ ورځو کې چې یو ټی لا د خپلې ودې دوره د مور په لاس کښې تیروله او نور ژر زیږیدلی ؤ د خیاطۍ ماشین، د غربت او مسکینۍ نه د میراث په ډول پرېښوده.

«پاته په ۳۰ مخ کې»



### میرمن رحمتو

میرمن رحمتو د ښاغلي محمد رفیق لور د کندهار د ارغنداب په یوه سیمه کې په ۱۳۰۶ کې زیږیدلې ده پر لسو کالو وه چې د محیطي رسم سره سم یې واده وکړ.

ددې میړه علاوالدین چې د هغه وخت ابتدائي تعلیم کړی او د دولت مامور ؤ د هغه خاص تنو پراو عالي افکارو د درلودلو په نسبت د خپل شاوخوا د وستانو او خپلوانو څخه ګوښه شوی فقط د دوو لاسو په خواري پوخت ؤ.

میرمن رحمتو د خپل څښتن په کور کې د هغه په رهنمائی د ژوند چارې مخ ته بیولې تر څو یې د ۲۵ کلو په جریان کې اوه اولاده منځ ته راوړل د دې مشر اولاد

د ظاهري په نامه یو ځلمی لوروه چې د هغې د روزنې او تعلیم څخه د یوې مور ډیر زحمت او فداکارۍ دوره شروع شوه.

میرن رحمتو د پوره اولادو په روغتیا صحت او تعلیم کې هر ډول محیطي او اقتصادي مشکلات ګاللي او د یوې پښتنې مور په صفت یې د همت ملا وتړله د میړه د ما مورېت د هغه

وخت په ساده معاش د کورنۍ د درلودل او د اولاد و د درلودل

«پاته په ۳۰ مخ کې»

د ۲۱۵مخ پاته

# دځوانانو دمطالعې او پلټنې ...

بې له هغه مخه دیاد ګاز په تر ګه پرېښودل.

داسې ذده کو ونکې چې د کوښښ ذهنی او نا بو هی په سبب له پوهنې څخه خارج شول او تر هغه وروسته دنې ی نا پخه ځنې جوړ شول.

دا ځو له دشخصي مطالعې ګټه پلل کېږ ی، فکر کو ئ د مطالعې او څېړ ني دمیڼی دراوږ وندي کو لو لپاره ددغو مثالو ذکر کافي وی.

هیله ده چې دغه لنډه لیکنه له یوې خوا ځوانان د مطالعې لورې ته را بولي او له بلې خوا صالحه مقامات دې باته کتابونو دراغونډولو او د مطا لعې د ګټورو امکاناتو د برابرولو په برخه کې هڅه وکړ ی ترڅو دځوانانو ذوق او علاقه ئي په عملې اونظري ډول په آزاد اچولې او له ګټې څخه ئي زموږ ګران هېواد مستفید شي.

## د لو یانو خبرې

دهر کار اساسي شرط ټینګه اراده او قوي عزم دی.

شکسپیر

نیك نوم هغه کمیس دی چې هیڅکله نه زړ یږي. ایسون

(د۱۵۵مخ پاته)

# شارل...

شکل ته اړ نه ب ته ورکوی. له دې امله نوو په مذهب دلا یبنیتس دمذهب سره موافق او د هغه خوندی

دفر دجوهر ته عقیده لری خود هغه په خلاف د فردجوهر محدوده او متناهي ګڼي

دنوو په عقیدت قاعده کلي نه بولي او بې علته پیښې جایزې ګڼي د دغه اختیار ته معتقید دی او ایجاب په هره باره کې ضرورې نه بولي.

دنوو په لګه کانت معتقد دې چې انسان په خپله اراده کې مختار دی چه د هغه وجدان په قطعي توګه دتکالیفو د ترسره کولو امر کوي.

وایې څرنګه چې عدالت په جهاني امورو کې حکمفرمادی دې نو دغه فقره داخلاقو مبناده

افراد یو تر بله دا ین او مدیون دي او باید ددې امر په مقتض عمل وکړ ی، دغه حالت داعتدال په ډول وساتي او که داسې وکړ ی نو سوله او سلامتیا به برقراره وی. د بدمرغه خلکو پر بل باور نه لري هر یو غواړي نور خلك خپلو اغراضو وسایل وګرځوي او دهغه څخه پر یکړه وکړي.

دغه وجه ده چې سوله او سلامتیا په جنګ او شخړه بدلیږي

دادې اعتدالي حالت د انسان دنفسانیت او حانځانې نتیجه ده بې شر او فساد ذ یږوي او د انسان ګناه هم دا د... دغه فقره دې دلیل ده چې انسان په خپلو اعمالو کې مختار دی او جبر په کار نه دي.

اما دانسان مختار یت چې پخوا د هغه دعصیان او هبوط سبب سوی وو په آینده کې به د هغه دعروج او لوړ والي سبب وګرځي او د بشر سعادت د هغه په نیکه اراده کې و بولو نه د هغه دعلم او پوهې په بر مختیا یا طبیعې تحول کې.

# دلو یانو خبرې

الماس پر ته له مښلو نه صیقل کیږی او انسان پر ته له تجربو نه کامل کیږی.

❀❀❀

یونا پوهیږی همیشه ډیری خبری کوی خو پوهیږی تل خبري اوري.

❀❀❀

هغه څوك چې له اندازې نه زیا ته دوراندېشی کوی سودا یې کیږی.

❀❀❀

اردچې بې موره لو یه شی بېمورته شی کیدلای.

❀❀❀

معما یوسه کیږی څکه ممکن آخرنی کیلی چې به جیب کې موده د امید قلف خلاص کړی.

❀❀❀

(د۲۸۵مخ پاتې)

# د کندهار د کال ممتازي...

محرلکه چې د پوهی خوا کوم میراث

ده اولاد ته نه وو پاتې او له

بلې خوا یې کوم داسې خپلوان نه

درلودل چې د دې سره د اقتصاد له پلوه

مرسته وکړي نو چیرو خلکو دې ته

د مصلحت ورکاوه چې بل میړه وکی

خو دا په دې پوهېدل چې میړه کول د دې

او لادونه د مور او پلار د

مهربانیو څخه محروم کوي نو د دې

دپاره چې او لادونه یې د مور د نې

محبت او حمایې څخه بې برخې نه شي

داسې تصمیم یې ونیوی چې خپل ځان

کار او د پې ته وسپاري.

په دې وخت کې د دې مشر زوی

پیر محمد ۸ کالو او بل زوي یې چې صالح

محمد نومیده ی د پلار تر مرګ پوره میاشت

وروسته یې شو خو د پلار تر مرګ ۵ د دې

میاشتې د کونډې زهری بل زوی وزېږېده

او پرده یې د صالح محمد نوم کېښود لی

چې پو صالح محمد یې پوه میاشت و څه

له لاسه ورکړی و.

پسله میړه له مرګه لمړنی کار چه کونډې

زهری وسر ته ورسا وه دا وو چې خپل

مشر زوی پیر محمد یې په ښوونځي کې

شامل کړ که څه هم د دې خپلوانو او د

کوڅې خلکو چیر مخالفت کاوه او دا

کار یې پو ننګ باله څکه چې په هغه

وخت کې د ښوونځي او د ښوونځي د لوستلو

سره خلکو تعصب درلود خو میرمن زهره

په دې پوهېدل چې پو ازې ښوونځي او علم

ددې د زامنو د راتلونکې ژوند

اېکمرغه روښانه او آرام کولی

شي.

کونډې میرمن زهری په په

مزدوري د ګاونډیانو کالي

ګنډل کالي پر یمنځل او چوچۍ

پخلی ورته پخول څو د خپلو

ماشومانو خولې ته پوره ګوله مړی

برابره کړي.

دا چیره خوښه وه چې شرافت

مندانه ژوند یې که څه هم چیر

دېړونه یې ګالل پر مخ بیوی

ولی د اهیله یې درلوده چې

راتلونکی به یې آرامه او روښانه

وی خو دژوند نورو حوادثو

دا آرامه نه پرېښود له څه وو چې

۱٤ کلنه وه دوی لور، بی بی

صاحبه، چې مور ته چیره ښایسته

او ګرانه وه ناروغه شوه څو وفات

شول د ټول فامیل او خصوصاً د مور

پر زړه یې نه هېرېدونکی داغ

پرېښود.

پسله ۱۲ کلو مبارزو وې

و کولای سوای چې مشر او ځوان

زوی پیر محمد د احمدشاه بابا د

لیسې څخه په اعلی درجه و

بریالیتوب ته ورسوی.

او س نو دې و کولای سوای چې

په راحت ژوند کې خو د زوی دې

هیلی ته ای تن ورکي چې یا فاکولته

ووایې او یا خارج ته چې چانس

ئې درلود ولاړ شي نو بیا هم د ی

و خپلې مزدوری او خوار یو ته

ادامه ورکړه څو خپل زامن ئې

پو انجنیر پیر محمد زیری او بل

ډاکتر صالح محمد زیری د ټولنې

و خدمت ته تقدیم کړل.

میرمن زهره چې اوس د ۷۲

کالو ده خپل ځان چیر سعادتمنده

او نیکمرغه بولی.

(د۲۸۵مخ پاتې)

او اولاد د رلود له اقتصادی

فشاردمو ومجادله د او لادد

روزنی په هکله د حده پاس طاقت

او حوصله غوښته د محیط ناوړه

تعصبات د خلکو د افکارو خلاف

ناپوهی او خرافا تو سره مبارزه

پراخه حوصله غوښته خو سره له

هغه دی خپل او ه اولاده د ښکلو دیا

ابداعی او خارج ته د عالی

تحصیلا تو د پاره لیږلی دی.

میرمن رحمت واوه اولاده لری

چې دوی ئې لو ڼی وپنځه ئې زامن

دی چې په ترتیب سره ئې د لته

نومونه او د تعلیم درجه ورکالدی

کوو.

میرمن ظاهره کامرا ن

ښکلو دیا

دوست محمد د حقوقو لیسانسه

عبدالقدیر افغانی محصل

په شوروی کې.

بهاالدین ښکلو دیاد کا-

نکور منتظر.

احمد بشیر د محمد خان د ښوونځی

داو می ټولګی لمړی درجه زده

کوونکی.

پښتله مادی دا بتدا ئی زړ ښوونځ

اناد پنځم ټولګی لمړی درجه

زده کوونکی.

دغه یادگارونه حکایت د خپلواکی کوی
پښه تر جمانی دافغانی قهرمانی کوی
څوک چی دوطن په مینه جار کاندی سرونه
خود په ددغو په نامه هر څوک سرلوړی کوی



دیادگار منار



د پغمان طاق ظفر

# په دی گڼه کی



په کندهار کې د زاړه ښار یوه برخه چې د دغې کنډوالې په مخامخ
سیمه کې دیونانې دورې دیوال کشف سو

د کندهار دولتي مطبعه